


# هالی

د ابرار مؤسسې دوه میاشتنۍ خپرونه

لومړی کال، دریمه ګڼه، ۱۳۸۱ سلواغه ـ وری/۲۰۰۳ جنوري ـ مارچ



د افغاني معیوبینو د بایسکل ځغاستې سیالۍ ترسره شوه.



تاج محل، د مینې محل



افغاني معیوبو ښځو د معیوبینو ړیواله ورځ ونمانځله.

له ناګار صیب سره د زړه خواله.

او ستاسې د خوښې ګڼ شمېر مطالب.

# ډالۍ

د ابرار مؤسسې دري میاشتنۍ خپرونه

## په دې گڼه کې




کمپوز و ډیزاین

**ذبیح الله شفق**

**د امتیاز خاوند:**

د افغاني معیوبینو لپاره د بایسکل چلولو او بیارغونې تفریحي موسسه (ابرار)

**د تاسیس نېټه:**

۱۳۸۱ل کال، د زمري میاشت.

**مؤسس:**

ډاکټر عبدالبصیر توریالی.

**مسوول مدیر:**

حفیظ الله تراب.

**مرستیال:**

عبدالناصر بریالی.

**کتنپلاوی:**

عمرا خان منیب او سید الیاس صداقت

## پــــته:

**په افغانستان کې:**

د عامې روغتیا روغتون، جلال اباد، ننگرهار. تیلیفون: ۲۰۲۴

**په کابل کې:**

تایمني، سرسبزي چوک، دویم سرک، شیریزدان جومات ترڅنگ.

**پېښور:**

ابرار، جمرود روډ، یونیورسټي ټاون.

تیلیفون: ۰۹۱۱۰۹۱۸۴۴۰۷۸-۰۹۱-۱

فکس: ۰۹۲-۰۹۱-۸۴۰۵۲۱


ډالۍ د لیکوالو د لیکنو ننګه نه کوي.

بسم الله الرحمن الرحیم

## سرلیکنه:

# نوې ناروغي



دې کې شك نشته، چې انقلابونه که د ډېرو سرونو د ښندلو په بیه بریالي کېږي، نو وړسره له ځانه سره داسې خواږه هم راوړي، چې په ترلاسه کولو یې ډېرې سپېڅلې هیلې ربنتینې ځېږي.

په خواشینۍ سره د افغان اولس په برخه کې پورتنی تعبیر غلط وختوت او د لکونو شهیدانو او معیوبینو وینې او مېړانې مو داسې لاهو شوې، چې د ورسره شوې جفا ښېلګه یې د نړۍ په تاریخ کې نشته. تېرو کلونو پر نالوستې، بېوزلۍ او ناخوالیو سربېره داسې ناوړه نادودې هم له ځانه سره راوړې، چې پخوا له دې ورسره ډېر لږ افغانان اشنا وو. افغانان که وږي وو او که تږي، خو پتمن ژوند یې درلود. هغوی نه د پردیو دروازو ته کله درېدلي نه وو او نه هم پرې د چا منت و. پرهغوی ترهرڅه د وطن مینه ګرانه وه او خپل کولتوري ارزښتونه یې ترهرڅه غوره او ښاغلي ګڼل.

په خواشینۍ سره د تېرو څو کلونو راپه دېخوا د افراط او تفریط ژوند د دوی دغه اصل ته ډېر زیان ورساوه او هغه داسې، چې په دوی کې داسې ښاغلي راپیدا شول، چې هغه د چا خبره په یوه شپه کې د قارون پر خزانه کېناستل. دغو ښاغلیو ددې لپاره، چې د ناخاپي با ایتوب د پوښ ننې له وېرې یې خپلې پانګې د خلکو له سترګو پټې کړې وای، برعکس یې په پوره جرئت د لوکسو موټرو، مجللو ماڼیو او دنګو بلډنګونو په بڼه د وږي او بې اسرې افغان ننداري ته وړاندې کړې. د داسې کړنو نه خلکو ته جوته شوه، چې پخوانې سپېڅلي شعارونه، چې د دوی په ژبه زمزمه کېدل، یوازې او یوازې د اوبو کرښې وې او اصلي موخه هغه څه وه، چې دوی یې خاوندان شول. د همدغه کار تداوم ډېر افغانان د پښتو ددې اصطلاح پر لیکه، "یو ګوري، بل پسخېږي" روان کړل او دا دی اوس ډېر افغانان په دې ګروهمن دي، چې نه علم پکار دی او نه مېړانه، د سړیتوب معیار یوازې پانګه ده، چې څنګه شونې وي، باید لاس ته راوړل شي او ژر تر ژره دوی هم ددغو ښاغلیو غوندې د نازولي ژوند خاوندان شي. پخوا په نورو پیسې ګټلې او موږ کیسې، خو اوس داسې نه ده. دریغه، چې دا ناروغي خو دغو جنابانو په ځان کې ساتلې وای.



**"که دې تمه د بنده له دره پرې کړه**

**بادشاهي دې مبارك شه که ګدا یې"**

په همدې هیله.

عبدالناصر بريالي
ننګرهار

# د معيوبينو په بايسيکل پيغام وړنې خدمتونه

# Disabled Cycle Messenger Servicess
## (D.C.M.S)

ابرار مؤسسې د خپلو فعاليتونو ترځنګ د (۲۰۰۲) کال د نومبر پر (۲۱) مه نېټه د (DCMS) ياپه بايسيکل د پيغام وړنې خدمتونو په نامه مرکز په رسمي توګه په کابل کې پرانيست.

په پرانيستونکې غونډه کې پر ګڼ شمېر داخلي او بهرنيو مېلمنو د افغانستان د منځمهالي حکومت د شهيدانو او معلولينو وزير ښاغلي عبدالله وردګ هم ګډون وکړ.

غونډه د قران کريم د څو مبارکو آيتونو په تلاوت پيل شوه، په پرانيستونکې وينا کې د ابرار مؤسسې رئيس ښاغلي ډاکتر عبدالبصير توريالي ددغې پروژې د اړتيا او ارزښت په ترځ کې وويل: زه چې کله امريکې ته لاړم، نو هلته مې وليدل، چې د بايسيکلونو په وسيله د خلکو پيغامونه له يو ځاى څخه بل ځاى ته په ډېرې اسانۍ سره رسېدل. ماته دغه فعاليت ډېر مناسب او غوره ښکاره شو، په ځانګړې توګه په هغو ښارونو کې، چې هلته د خلکو او موټرو ډېر بيروبار وي. هماغه و، چې له ځانه سره مې پرېکړه وکړه، چې زه به هم په افغانستان کې دغه فعاليت پيلوم او دا دى نن هغه ورځ ده، چې تر څو کلونو هڅو وروسته په دې بريالى شوم، ترڅو د افغانستان په پلازمينې کې په دې اړه په کار پيل وکړم.

د ابرار مؤسسې رئيس زياته کړه، ښه به دا وي، چې په دې اړه تاسې ته DHL د کيسې لنډه يادونه وکړم: DHL درې ورونه وو. درې واړه په يوې ډېرې ببوزلې کورنۍ کې پيداشوي وو، يو وخت په دې وتوانېدل، چې د يوه يوه باسيکل خاوندان شي. يوه ورځ يې د ښار له سوداګرو او بډايانو سره وليدل او هغوى ته يې وويل، چې تاسې خپل پيغامونه چېرته لېږئ او يا يې څوك درته رالېږي، نو دغه کاربه موږ درته په بايسيکلونو په ارزانه، آسانه او بې له کوم ځنډه وکړو. هماغه و، چې ښاريانو له دوى سره تړونونه لاسليك کړل، چې دا دى اوس يې نړيوال حيثيت ګټلى. اميد دى، چې (DCMS) به هم يوه ورځ د DHL د سيالۍ شي.

تر دې وروسته د منځمهالي ادارې د شهيدانو او معلولينو وزير ښاغلي عبدالله وردګ د خپلې وينا په ترڅ کې وويل: د ابرار مؤسسې پخپل تېر تاريخ کې هم دا ډول ډېر نوښتونه کړي، چې نننۍ پروژه يې يوه نوې بېلګه ده. هغه زياته کړه، زه په دغه کار کې له تاسې سره ځان شريك بولم او هغه څه، چې زما په توان کې وي، هېڅکله به يې له تاسې څخه دريغ نه کړم.

هغه وویل: د ابرار دغه نوې پروژه یو داسې ابتکار دی، چې نوښت یې ساری نه لري. دغه پروژه به وکړای شي، چې د کابل د خلکو پیغامونه،لیکونه، ډالۍ او مکتوبونه په ډېره اسانه د خلکو له خوا اړوندو ځایونو ته ورسوي.

بله لویه خبره دا ده، چې دغه پیغام وړونکي ټول معیوبین دي، نو ځکه به نوموړې پروژه معیوبین وهڅوي، چې پخپلو لاسونو ځانونو ته پاك او حلال رزق وګټي او د خیرات پرځای به پخپلو ځانونو ډاډمن شي او له بلې خوا به د پیغامونو رسونه، چې په ښار کې د موټرو د ګڼې ګوڼې له کبله ځنډنۍ وه، چټکه شي. هیله ده، چې نورې مؤسسې هم په ورته نوښتونو لاس پورې کړي.

وروسته د **DED** محترم رئیس ډاکټر باور د غونډې برخه والو ته وویل:

زه ډېر خوښ یم، چې یوه ریښتینې نوې پروژه نن پرانیستل کېږي. دا یوه ډېره ښه پروژه او ښه کار دی. ددې له برکته به معیوبین وروڼه پخپلو پښو ودرېږي او په خپلو متو به خپلو کورنیو ته پاکه ګټه کوي. تاسې وینئ، چې په کابل کې د موټرو ډېر بیروبار دی او یوازې همدا پروژه کولای شي، چې د ځنډ مخنیوی وکړي. زما د شهیدانو او معلولینو له وزارت او ټولو مؤسسو څخه هیله دا ده، چې دا ډول پروژې فنډ او وهڅوي، ترڅو له یوې خوا د افغانستان معیوبین په پښو ودرېږي او له بلې خوا په ښارونو کې د ډېرې ګڼې ګوڼې مخه ونیول شي.

تر ده وروسته د ښځو د وزارت په استازیتوب دل افروز د ابرار مؤسسې له فعالیتونو خوښي څرګنده کړه او د نوې پروژې مبارکي یې د غونډې برخه والو او په ځانګړې توګه معیوبینو ته ورکړه.

همدارنګه په نوموړې غونډه کې د **CDAP** د فزیوتراپي د څانګې مسؤل ښاغلي راضي خان نوموړې پروژه وستایله او د **CDAP** له خوا یې (۱۰۰۰) امریکایي ډالره بسپنه وکړه. د معیوبینو په استازیتوب ښاغلي نیك مل خبرې وکړې او ددې پروژې په برخه کې یې ډېره خوښي څرګنده کړه. د غونډې په پای کې د شهیدانو او معلولینو وزیر ښاغلي عبدالله وردګ او لیلي لویسك پرانیستونکې پټۍ قیچي کړه او ټولو ګډون کوونکیو ته یې مبارکي وویله.

غونډه په یولس نیمو بجو پای ته ورسېده.

**په بایسکل د پیغام وړنې د مرکز پر کارولو نه یوازې تاسې له افغانستان سره مرسته کوئ، بلکې معیوبینو ته د کار زمینه هم برابرولای شئ.**

# د معیوبینو د بایسکل ځغاستې سیالۍ ترسره شوه

د معیوبینو د نړیوالې ورځې د نمانځلو په ترڅ کې د ابرار مؤسسې په نوښت د افغاني معیوبینو د بایسکل ځغاستې (یوولسمه) سیالي د روان کال د اکتوبر پر دېرشمه د تورخم - جلال اباد پر لویه لار ترسره شوه.

په دغه سیالۍ کې، چې د هېواد د بېلابېلو ولایتونو (۱۳۰) تنو معیوبینو ګډون کړی و، معیوبین پر شپږو ګروپونو وېشل شوي وو، چې ډېر واټن یې (۲۵) کیلومتره او لږ یې (۵) کیلومتره و. دغه ګروپونو د سهار پر اتو بجو د هوایي ډګر، ثمرخېلو، حصارشاهي کمپ او د باریکاب له پله نه پیل وکړ، چې د سیالۍ د پای ټکی د ننګرهار لومړي نمبر قول اردو سره ټاکل شوی و.

په داسې حال کې، چې ددغې سیالۍ ننداري ته د جلال اباد ښار ګڼ شمېر ښاریان راغلي وو، د BK په ګروپ کې حبیب جان، د AK په ګروپ کې رومل خان، د ماشومانو په A ګروپ کې نبي ګل، د B په ګروپ کې میر باچا، په ډبل ګروپ کې قاهر او د فلجو معیوبینو په ګروپ کې نظیف الله لومړي مقامونه

حبیب جان، چې د بایسکل ځغاستې د اتلولۍ تر ګټلو وروسته خلکو په اوږو کېنولی دی.

وکتل. ښاغلي حبيب جان (۲۵) کيلومتره واټن په (۵۴) دقيقو کې تمام کړ، چې د نورو کلونو د سياليو په پرتله نوی ريکارډ دی.

وروسته له دې، چې د معيوبينو ټول ګروپونه راورسېدل، په ډله ييز ډول له ښار نه ابرار مؤسسې ته راغلل او په هغه غونډه کې يې، چې د دوی په ویاړ جوړه شوه وه، ګډون وکړ. دغې غونډې ته د جلال اباد د ښار پر ښاريانو سربېره، ګڼ شمېر دولتي چارواکي، د مؤسسو استازي او بهرني مېلمانه هم راغلي وو. په پيل کې د قرانکريم څو مبارك آيتونه تلاوت شول، ورپسې د ابرار مؤسسې رئيس محترم ډاکټر عبدالبصير توريالي ټولو راغليو مېلمنو او معيوبينو ته هرکلی ووايه او د بايسيکل ځغاستې پر سيالۍ يې رڼا واچوله. تر هغه وروسته د ختيځ زون مرستيال ښاغلي ډاکټر محمد اصف قاضي زاده د ابرار مؤسسې فعاليتونه وستايل او زياته يې کړه: په رښتيا هم، چې له ډېره راهيسې د ابرار مؤسسې د معيوبينو خدمت په خورا اخلاص کړی او د دا رنګه لوبو جوړول د ډېرې ستاينې وړ دي. ورپسې د ننګرهار د عامې روغتيا رئيس ښاغلي ډاکټر فضل محمد ابراهيمي د خپلې وينا په ترڅ کې وويل: همدا معيوبين وو، چې د روسانو د يرغل په وړاندې يې داسې مقاومت وکړ، چې تاريخ به پرې وياړي، همدوی وو، چې د خپلو غړيو په قربانۍ يې هېواد له سره تاړاکه وژغوره، خو په خواشينۍ سره د دوی سرښندنو ته د قدر په سترګه ونه کتل شو او کورنيو جنګونو د دوی حقوق تر خاورو لاندې کړل. هغه د ابرار خدمتونه وستايل.

تر وينا وروسته د مېلمنو له خوا د ابرار تهيه شوي انعامونه پر ګټوونکيو



ښاغلی ډاکټر محمد اصف قاضي زاده په وينا پر مهال

معیوبینو په دې ډول ووېشل شول، چې په هر گروپ کې لومړي ته نوی چینایي بایسیکل، دویم ته د گنډلو ماشین او دریم ته اعلی دیوالي ساعت تاکل شوی و.

دغه غونډه، چې د سهار پر (١٠) بجو پیل شوې وه، د غرمې پر (١٢) بجو د ننگرهار د معیوبینو د رئیس حاجي حیات خان په دعایه پای ته ورسېده، چې وروسته د غونډې ټولو گډون کوونکیو د ابرار موسسې له خوا په هغه سهارنۍ کې چې د دوی لپاره جوړه شوې وه، گډون وکړ.

# هوډ د برې لومړی اړ دی.

"اروانباد شهید سردار محمد داود خان"

## غزل

*کاظم خان شیدا*

په سپین مخ یې توري زلفې تار په تار کړې
د عالم خونې یې ورانې وار په وار کړې
څوك دې روغ نه دي پرې ایښې په دا ملك کې
د غمزې توره په لاس په چا گوزار کړې
چې د زړه په هدف تل لکه سم لگي
د کرو بڼو له تیره به څو زار کړې
چې افتاب دې د جمال شو بې نقابه
بیا به گرم په عالم د عشق بازار کړې
خپل ناکام به دېوانه شیدا در بیایي
که دامن په کاڼو ډك لکه کوهسار کړې

# افغاني معیوبو ښځو او نجونو د معیوبینو نړیواله ورځ ونمانځله

د روان عیسوي کال د نومبر د میاشتې پر څلورمه نېټه د جلال اباد ښار د ابرار موٴسسې د ښځو د اوټ ریچ په څانګه کې ګڼو معیوبو نجونو او ښځو د معیوبینو نړیواله ورځ د یو

موٴسسې مرستیال ښاغلي عمراخان منیب د خپلې لنډې وینا په ترځ کې وویل:"د دسمبر درېیمه د معیوبینو نړیواله ورځ ده، خو څرنګه چې په نومورې نېټه روژه ده، نو ځکه مو



*د ښځو معیوبینو د غونډې یوه ځنډه*

شمېر شانذارو مراسمو په ترځ کې ونمانځله.

دغه غونډه، چې د ابرار موسسې له خوا جوړه شوې وه، د سهار پر (۱۰) بجو معیوبې خور بسینې د قرآن عظیم الشان د څو مبارکو ایتونو په تلاوت پیل کړه. ورپسې د ابرار

وټبېله، چې نومورې ورځ نن ونمانځو". هغه زیاته کړه:" له ۱۹۸۱ کال راوروسته او په ۱۹۹۲ کې ملګرو ملتونو لومړنی لسیزه د معیوبینو لسیزه وبلله او د دسمبر درېیمه یې د معیوبینو د نړیوالې ورځې په توګه ومنله. په

مشـکلات افـراد ان جامعـه نـيز افـزوده ميشـود که مانند جامعه فقير افغانی کـه اقتصـاد ان بـه صفر مساوی ميباشـد ناقـابل جبـران ميباشـد.

مگـر بـاوجود مشـکلات زيادیکـه قشـر معيـوب مـا بـه ان روبـرو ميباشـد يـک قرينـه مثبت هم وجـود دارد، طوريکـه جامعـه مـا يـک جامعـه بسـيار غيـور و زحمتکـش اسـت و معيوبيـن افغـان هـم يـک جز ايـن جامعـه اسـت و بـه رهنمـايی بسيار انـدک و بـه کمک بسـيار کـم و نـاچيز انـها ميتوانـد بسـوی خـود کفـالت و منحيث اشخاص مثمـر جامعـه قـدم بردارانـد کـه بعضـی از معيوبيـن کـه در ايـن تجمـع مـا و شـما وجـود دارنـد يـک نمونـه خـوب ادعـا مـن شـده ميتوانـد.

در پايـان گفتنـی هـای خـود يکبـار ديگـر از اشـتراک تـان در ايـن تجمـع کـه بـه مناسـب روز جهانی معيوبيـن دايـر گرديـده اظـهار قدردانـی ميکنـم و تشـريف اوری شـما را نـيز بـه بخـش او تريـج موسسـه ابـرار خـير مقـدم ميگـويـم و از خداونـد متعـال اجـرا عظيـم را برايتـان ميخواهـم.

د ابـرار مؤسسـې د ګنډلو د ښـانګې پـه استازيتوب عـابدې خـور وويـل:

د قدرمنـو ملمنـو او محـترمو خوينـدو پـه اجـازه. زه غـوارم د ښځينـه معيوبينـو پـه نمايندګۍ لـه ابـرار خيريـه مؤسسـې څخـه مننـه وکړم، چې مونږ معيوبينـو تـه يـې خاصـه پاملرنـه کـړې ده. مـا د ابـرار مؤسسـې مربوطـه دوه کورسـونه، چـې يـو يـې اکوپيشـنل تـراپـي، چـې شپږ مياشـتنی او بـل يـې ريفريشـر چـې څلـور نيمـې مياشـتې مـوده وه، لوسـتلي، چـې پـه نتيجـه کې مې کـافي انـدازه تجربـه ترلاسـه کړه.

زه اوس د I.O.C پـه نـوم يـوه موسسـه کـې کـار کوم، چې لـه يـوې خـوا د خپـل فـاميل اقتصـادي مشـکلات رفـع کـړم او لـه بلـې خـوا خپلـو هېوادوالو تـه د خدمـت مصـدر وګرځـم.

زه يـو ځـل بيـا د ابـرار لـه خيريـه موسسـې څخـه د زړه لـه کومـې مننـه او قدردانـي کـوم، چې مونږ معيوبينو تـه يـې ځـانګړې پاملرنـه کـړې ده، ترڅـو معيوبيـن وکـولای شـي، چـې خپـل مشـکل پخپلـه حـل کـړي او د نـورو د اوږو بـار نـه شي.

ستاسو لـه توجه څخه مننـه

د غونـډې د پـای پـه شـېبو کـې د معيوبـو نجونـو ترمنځ د کېلـو خوړلـو سيالي پيـل شـوه، چې پايلـه يـې د A ټيـم پـه ګټـه وه. وروسـته پـر راغلـيو معيوبـو نجونـو او ښځـو د برار مؤسسـې لـه خـوا برابرې شوې ډالـۍ وويشـل شـوې. غونـډه د غرمـې پـه (۱۲) بجـو پـای تـه ورسـېده او ګـډون کوونکيـو پـه هغـه غرمنـۍ کـې، چـې د ابـرار مؤسسـې لـه خـوا ترتيـب شـوې وه، ګـډون وکـړ.

## شهرت او شرافت

که په افتخار اوشهرت پسې ګرځې، نو زما پندمه هېروه! هغه دا چې له شرافت نه لاس واخله.

(نېچه)

استاد محمد اصف صمیم

# لسان الغیب، که غیب اللسان رحمان بابا؟

# کوم ترکیب سم دی؟

د رحمان بابا لـه نامـه سره بـه غیب اللسـان او لسـان الغیب لقب د بابا ډیرو مینـه والـو لوستی او اورېدلی وي او د دواړو ترکیبونو په مانا او توپیر بـه هـم ډېر ښاغلي پوهېږي، خـو لیکلي تـرې څـه نـه دي تـر سترګو شـوي. څکـه نـو ددې پوښتنـې ځوابولـو تـه اړتیـا وانګېـرل شـوه، چـې د رحمـان بابـا شـاعرۍ او هـنري ارزښـت تـه پـه پاملرنـه کـوم اضـافي ترکیـب ورتـه نـږدې دی؟ او دا چـې دا نحـوي ترکیب او (لقب) لومړی په پښتو شـاعرانو کـې چـا د چـا لپاره کـارولی دی؟

ددې لپـاره، چـې دې پوښتنـو تـه مـو لنډ او اسانه ځـواب موندلـی وي، لومـړی دغـه دواړه ترکیبونـه د عربي نحوې پـه کنډه تلو، چې تعریف، توپیر او ځای (مورد) یـې جوت شي:

د "اصول النحو" لیکوال دوکتور علي اکبر شـهابي د مضـاف الیـه پـه بـاب وایـي:

مضـاف الیـه هغـه اسم دی، چـې کـوم بـل اسـم وریـورې اړونـد شـي، د مضـاف تعریـف د عواملـو یـا ادواتـو پـه څرنګوالـي پـورې اړه لـري، کـه تـرې لـه مخـه راغلـي ادوات (یـا عوامـل) جـاره یـا ناصبـه وي، نـو اثـر یـې هـم د مجـرور زېـروال او منصـوب (زوروال) وي، خـو ترکیـب بـې ادواتـو او سـاده وي، نـو مضـــاف قاعدتـــاً مرفـــوع (پېښـــوال) وي او مضـــاف الیـــه مجـــرور بالاضافـــه وي لکـــه:

خیرالکلام ماقل و دل یا ان بعض الظن اثم (الایـه)

او کـه مضـاف غیـر صفت وي، اضـافت معنـوي بلـل کېـږي، لکـه:

کتـاب علي (د علي کتـاب)، خـاتم فضـه (د سـرو ګوتـه).

خـو کـه مضـاف صفت وي، اضافت لفظي ګڼـل کېـږي، لکـه:

بـائع التیـن (اینځرخرڅوونکـی)، شـریف النسـب (درونـد نسـبی)

مضـاف د اضـافت لـه مخـې ارزول کېـږي او پېژنـدل کېـږي، داسـې چـې کـه مضـاف الیـه معرفـه وي لکـه:" پـه لانـدې مثـالونو کـې، چـې "فریـد" او "سـعید" دي.

خادم فرید (د فرید نوکر) او قلم سعید (د سعید قلم).

خـو کـه نکره وي تخصیص پیدا کوي لکه: پـه لانـدې بېلګـو کـې" رجـل" او "امـراءه":

خادم رجل (د سړي نوکر) او خـاتم امـراه (د ښځـې ګوتـه) *اصول النحو*- ۱۱۹ مخ.

د مضـاف او مضـاف الیـه د پېژنـد او تعریـف پـه رڼـا کـې راځـو د اضـافي مرکـب د بېلګـې پـه توګـه لسـان الغیب او غیب اللسـان تـه:

که په پورتنیو دواړو ترکیبونو کې مراد او موخه د شاعر د ژبې د ښکلا او روانۍ ستاینه وي، نو بیا لسان الغیب سم برېښي، ځکه لسان الغیب (د غیب ژبه) د استا پوهاند عبدالشکور رشاد په وینا هغه شاعر ته ویل کېږي، چې د الهام سرچینه یې ملکوتي وي.

*(د رحمان بابا په ویاړ په سرېږي (۱۳۸۱) سیمینار کې د استاد له څرګندونو)*

خو که موخه او مراد د غیب ستاینه او تعریف وي، لکه چې دلته مراد نه ښکاري، نو بیا به "غیب اللسان" (د ژبې غیب) ترکیب سم وي، چې مطلوب نه برېښي.

د لسان الغیب ترکیب په سمبنت او موخه توب کې همدې ته ورته یو بل ترکیب هم زموږ د ادعا ملاتړ کوي او هغه دا چې:

د "واقعات اکبري" اوړونکی محمد نصیر همایون لیکي، چې:

" د مولینا اکبر (اله ابادي) نظمونه، چې په مخزن کې چاپېدل، نومیرنیرنګ ورته د "لسان العصر" وړ نوم (لقب) غوره کړ. په مخزن کې دا نوم لومړی ځل وکښل شو او ډېر خوښ کړای شو.

*(کشاف تنقیدی اصطلاحات/۵۶)*

اوس راځو دې ته، چې لکه لومړی مو، چې پوښتلي وو، چې لسان الغیب لومړی ځل چاته، چا ووایه؟

د "لسان الغیب" نومي دوه ټوکیز اردو اثر د لیکوال (میر ولي الله ادیب امی ابادي) وینا ده، چې:

مولینا عبدالرحمن جامي (۸۹۸ هـ) لومړی سړی و، چې خواجه شمس الدین محمد بهاؤالدین شېرازي ۷۲۶۱-۷۹۱هـ. ته یې لسان الغیب او ترجمان الاسرار لقب ځکه ورکړ، چې د هغه وینا او ژبه له غوټو او کږېچ نه پاکه وه او وایي، چې دغه راز وینا (شعر) بې له اسماني ملاتړ او غیبي مرستې د چا نه شي په برخه کېدای. *لسان الغیب/۶۰ مخ*

خو شمس العلماء علامه شبلي نعماني رح بیا خواجه شمس الدین حافظ شېرازي (۷۲۶-۷۹۱ق) ته د لسان الغیب ویلو لامل دا ښیي، چې "د خلکو په اند د حافظ پر دیوان په فالنیونې سره د هرې غوښتنې سم ځواب راوځي".

مولینا شبلي تر دې څرګندونو وروسته د حافظ پر دیوان په یو درې مخیز جدول کې د فالنیوي لارې چارې ښوولې دي. *دیوان حافظ مترجم اردو -۱۹۵۶/۱۳ مخ*

اوس، چې د لسان الغیب لومړنی لقب ورکوونکی او لقب اخیستونکی او د لقب لامل (له غوټو او کږېچ نه پاکه وینا او اسماني ملاتړ او (تفاول) جوت شو، نو خبره د رحمان بابا کوو، چې دده پر دیوان باندې هم فالنیوی یو تاریخي او حافظ ته لنډ حقیقت او لقب یې (لسان الغیب) هم له حافظه رنګ اخیستی برېښي.

د پټې خزانې (۱۱۴۱-۱۱۴۲ ق تالیف) د لیکوال وینا ده، چې:

" زما پلار هسې نقل کا، چې په قندهار کې د رافضي ګرګین خان جور و ستم تر حد تېرى وکا او خلق د خدای هسې ځنې په عذاب سول، چې په مرګ خوښ سول، نو دوی په کوکران کې مغفور رحماني، برګزیده صمداني حاجي میر خان هوتك ښالم خېل ته ولاړل او له هغه یې چاره د کار طلب کړل او ټولو ویل: هر ډول، چې دی وایي هغسې کړي، هغه مغفور یوه ورځ تر ماښامه له نورو پښتنو خانانو او مشرانو سره مصلحت وکا او هسې تړون یې وکا چې ظالمان مړه کړي او

لـه دې پرتـه پـه زړه شـاعرۍ کې کومـه بلـه بېلګـه زمـا تـر سـترګو شـوې نـه ده، البتـه پـه راوروسـته وختـو کـې بيـا زمـوږ ځينـو شـاعرانو هـم د پېرزوېنـې دا دود پـاللی، چـې د لسـان الغيـب او ځينـو د غيب اللسـان پـه بڼه، خو لومړی د لسـان الغيـب بيلګې:

سترګوره افرين دې په پندار شه

آفرين لسان الغيبه ستا په ګفتار شه

*عبدالقدوس پرهېز*

*کابل ۱۳۴۰ دويمه ګڼه*

د پښتو لسان الغيبه د ادب د اسمان نمره!

کوږ پتکی تا سره ښايي ای رحمانه قلندره

*سيد امين الله امين*

*کابل/۱۳۴۷ دويمه ګڼه*

هسې در چې تا پېيلي په رښتيا لسان الغيب يې

د فطرت په حديقه کې د ادب د ګلو زېب يې

*عبدالله غمخور*

*کابل/۱۳۴۷ دويمه ګڼه*

رفيع استوي ستا روح ته درودونه

په رښتيا لسان الغيب عبدالرحمن يې

*حبيب الله رفيع*

*کابل ۱۳۴۷ دويمه ګڼه*

بابا ته که ددې قام لسان الغيب وی

خو د چا د پټو زړونو خبرېدای شوی

*رازقي نرنګوال*

*کابل ۱۳۴۷ دويمه ګڼه*

شاعري دې الهامي ده، د هاتف په خوله وېيږې

په رښتيا لسان الغيب يې په نظر د پښتنو کې

*پوهاند رشتين، کابل مجله/۱۳۴۹ دويمه ګڼه*

د پښتو لسان الغيبه! پښتانه ستا په ارمان بابا

تر خواږه کلام دې ګرځم ای صوفي عبدالرحمان بابا

*عبدالاحد سپين مل*

*کابل ۱۳۵۱ دويمه ګڼه*

لسـان الغيـب د "غيـب د ژبـې" پـه ژبـاړه ښـاغلي عصمـت الله روحـاني داسـې راوړی دی:

د شعر په نغمو د غيب له ژبې ترجمان يې

*رښتيا عبدالرحمان يې*

*کابل ۱۳۴۷ دويمه ګڼه*

پـه کوزه پښتونخـوا کـې د اردو ژبـې پښتـون ليکـوال او څېړونکـي ارواښـاد مـير عبدالصمـد خـان هم پخپـل اثر د "رحمان بابا شاعرانسانيت" کې رحمان بابا پـه لسـان الغيـب يـاد کـړی دی وايـي:

رحمـان بابـا تـه د پښتـو حـافظ شيرازي هم وايي اولسـان الغيـب هـم. *شـاعر انسـا نيت/۱۲۱ مخ*

همدارنګه ډاکټر اقبال نسيم خټك رحمان بابا د لسـان الغيـب پـه نامـه داسـې يـاد کـړی دی:

... زما خیال دی، چې د رحمان بابا د کلام ښکلا اساس د هغه معجز بیاني ده، چې د لسان الغیب ګمان پرې کېږي.

د رحمان بابا د جمال تصور، رحمانپوهنه، ۱۹۹۳ ـ ۷۶ مخ

او اوس د غیب اللسان د ترکیب دا یو څو بېلګې:

چې په شعر و شاعرۍ کې په یقین غیب اللسان دی
دا بابا عبدالرحمن دی دا بابا عبدالرحمن دی

نصرالله حافظ
کابل، ۱۳۳۸ دویمه ګڼه

دا بهار څه ښه بار دی غیب اللسانه
چې د ګل یې رنګ و بوی ستاله مزار راغی

امین الله زمریالی
کابل۱۳۴۱ دویمه ګڼه

ټول کلام یې هم اعجاز هم ابتکار دی
دی رحمان غیب اللسان د پښتو ژبې

حبیب الله رفیع
ورمه ۱۳۴۶ درېیمه ګڼه

شعر او په ادب کې دی بېشك غیب اللسان وینم
د شاعر په ویاړ کلیزه د رحمان وینم

همراز چیلیاری
کابل ۱۳۵۱ دویمه ګڼه

پردېس وایي حال مې ګوره لاس دې راکړه
ای بابا عالیجنابه ای ادیب غیب اللسانه

زین العابدین پردېس
کابل ۱۳۵۱ دویمه ګڼه

ای فیلسوف غیب اللسان پښتونه
ناستو ادیب عبدالرحمن پښتونه

تسل ښبوه وال
کابل، ۱۳۵۱ دویمه ګڼه

په مقام د شاعرۍ غیب اللسان و
د سر ګل د شاعرانو د افغان و

عبدالحلیم اثر
غوږګه

په دې وروستیو (۲۰۰۰م) کې د پېښور پوهنتون پښتو اکاډیمي د پشتون لسان الغیب په نامه د لیکنو یوه ټولګه په اردو ژبه خپره کړې ده، چې د نورو لیکنو په لړ کې یوه پکې د پیاوړي لیکوال او کره کتونکي عبدالکریم بریالي هم ده، چې "رحمان بابؔ شاعر غیب اللسان" نومېږي ددې سرلیك په پایلیك کتاب ټولوونکي ښاغلي جاوید خلیل ورته لیکلي دي:

صحیح لفظ لسان الغیب هے.

وګ ۶۹ مخ او ښايي د يې د پيرمحمد کاکړ پر پليون (پېروي) کړې وي، ځکه د ليکنې په وروستي مخ (۸۰) کې يې بيا هم غيب اللسان او هم د پير محد کاکړ همغه د غيب اللسان بېلګه راوړې ده.

**يادونه**: دا ليکنه ما تر خپرېدا وړاندې خپل نومانده استاد پوهاند رشاد ته واورولې، د هغوی څرګندونه دا وه، چې ما هم دغه ترکيب (غيب اللسان يا لسان غيب) چېرې راوړی دی، خو نه پوهېږم، چې چېرې؟ خو د غيب اللسان پر نامسمی ډېر ټينګېده پکار نه دي.

له بده مرغه ما د خپل درانه استاد هغه بېلګه پيدا نه کړای شوه، خو د نه ټينګار خبره م د خپل ليکنې پايلې ته پرېښوده، چې څه ترې راوځي.

د وياړلي استاد د علمي او ادبي لمر د ځلا په هيله.

> چې مې رنځورې هيلې وژني په طبيبو ګوتو
> زما ددې عصر دښمن خو ډېر بې ننګه ښکاري.
>
> "اند"

*فدا محمد فایض*

پښتبور

# يوه پر ځای خبره

د روان کـال (۱۳۸۱) د لینـدۍ پـر نهـه ویشتمه بـي. بـي. سـي راډیـو د افغانسـتان د ستري محکمې لـه رئیس ښاغلي شـیخ الحدیـث مولـوي فضـل هـادي شینواري سـره، چـې د افغانسـتان پـر قضـایي بـهیر د بحـث پـه غونـډه کـې د ګـډون لپـاره روم تـه تللـی و، یـوه مرکـه درلـوده.

راډیـو لـه ښـاغلي مولـوي صیـب نـه د افغانسـتان پـه قضـایي جریـان کـې د اصلـي ستـونزو پـه بـاب پوښتنـه وکـړه، مولـوی صیـب ډېـر پـوخ ځـواب ورکـړ، هغـه وویـل، چـې مـوږ همـدا اوس قضـایي سیسـتم لـرو. پـه قضـایي چارو کې ښـه پـوه او مجـرب کسـان هم لـرو، خـو زمـوږ اصلـي ستونزه د امنیـت نشتـوالی دی، کـه امنیت تـامین شي مـوږ نور مشکل نـه لـرو.

مولـوي صیـب ددې مشـکل د حـل لپـاره ډېـر ښـه تجویـز وړانـدې کـړ او هغـه دا چـې هېڅـوک باید پـه خپـل ولایت کې والـي نـه وي او هېڅـوک پـه خپله سیمه کې ولسـوال نـه وي، ځکـه مشـکل لـه همـدې نـه راجوړوي، پـه سیمه کې یـو حـاکم قـوت راشـي او زمـوږ قـاضي تـه وایـي، چـې هلـه زر شـه دغـه او هغـه ځمکـه راتـه قبالـه کـړه.

ربښتیـا هـم، چـې پـه افغانسـتان کـې اساسـي سـتونزه د امنیـت نشـتوالی دی او د امنیـت د نشـتوالي دلیـل هـم همـدا دی، چـې هـر سـړی پـه خپـل کـور او کلي کې حـاکم دی. کـه څـه هـم، چـې یـو ځـل خـو پـه دولتـي حلقـو کـې دا ګونګوسـي پورتـه شـول او بـهر تـه هـم راووتـل، چـې هېڅـوک بـه پـه خپـل ولایـت کـې والـي نـه وي، خـو وروسـته پـردې تـودو اوازو او ګونګوسـو سـړې اوبـه تویـې شـوې او خبره زړه پـه زړه پـاتې شـوه.

کـه چېرې د افغانسـتان موجـودو سـتونزو تـه د حـل اساسي لار پیـدا نـه شـي او همـدا اوسنـۍ زورونکـی حـالت دوام وکـړي، نـو د افغانسـتان خلك بـه نـور هـم د بدبختـۍ پـر لـور قـدم ږدي. دا اوس، چـې پـر افغانسـتان کـوم شـرایط راغلـي دي، دا هغـه څـه دي، چـې یـو شـمېر کتونکیـو د افغانسـتان د اوږدې ناروغـۍ د پـای تـه رسـېدو پـه خـاطر وروسـتۍ نسـخه ګڼلـه، مثلاً هـر چـا بـه ویـل یـاره دا ملګـري ملتونـه زمـوږ پـه بـاب پاملرنـه نـه کـوي. کـه چېرې ملګـري ملتونـه خپـل پـام دې خـوا تـه راواړوي، هرڅـه حـل دي. بـاید ملګـري ملتونـه افغانسـتان تـه نړیـوال سـوله سـاتي ځواکونـه راولېـږي، چـې امنیـت تـامین کـړي او یـو ملـي حکومـت جـوړ شـي، ددې ترڅنګ بـه د پخـواني پـاچـا د راتګ او عنعنـوي لویـې جرګې د جوړېـدو نسخې هـم مخـې مخـې تـه کېـدې، نـو اوس دا دی:

۱_ ملګـرو ملتـو خپـل پـام افغانسـتان تـه راواړوه او هغـه ده سـوله سـاتي ځـواك څـه، چـې ټولـه نـاتو یـې، چـې پـه نـړۍ کـې یـوازې نظـامي ځـواك دی، افغانسـتان تـه راوسـته.

۲_ پخوانی پاچا هم، چې د سولې تامین د هغه په راتګ پورې مربوط ګڼل کېده، راغی.

۳_ لویه جرګه هم جوړه شوه او خلکو د هېواد قیادت هم له همغې منل شوې عنعنوي لارې وټاکه.

۴_ نړیوالې مرستې هم هغه ده یو پر بل پسې اعلانېږي.

۵_ زړې افغانۍ، چې په هېواد کې یې د انفلاسیون بازار ښه تود کړی و، هم له منځه ولاړې.

نو زه نه پوهېږم، چې زموږ دولت نور څه ته منتظر دی! ښايي په دولتي کچ یو ډېر مهم ګام، چې دولت یې باید واخلي او وایي خستلای شي، همدغه دی، چې شینواري صاحب یې د یوه ډېر ښه تجویز په توګه یادونه وکړه. دولت باید له یوې نقطې نه پیل وکړي او که یې په یوه سرکش والي یا یوه سرکش قوماندان غوړونه تاو کړای شول، باور دی، چې په دویم ځل به یې بیا د زورکارونې ته اړتیا نه پیدا کېږي.

خو ددې ترڅنګ باید پردې هم غور وکړي او بلکې ډېره ښه خو دا ده، چې د والیانو یو سیمینار راوبلل شي او په هغې کې لومړی دا معلومه کړي، چې څوك د دولت دغه طرح مني او څوك یې نه مني! او هغه، چې نه یې مني څه دلایل لري؟ آیا فقط ددې لپاره یې نه مني، چې په خپل ولایت کې یو خپلسری پاچا وي؟ څه یې چې زړه غواړي هغه وکړي؟ او که نه څه معقول دلایل هم لري، که چیرې چا معقول او د غور وړ دلایل لرل، پر هغو دې غور وشي او د حل لارې چارې دې یې ولټول شي او که چیرې دولت په دې باب ګړندي او اغېزمن ګامونه وانخلي، نو دا اوسنی حالت به تر کومه پورې دوام کوي؟ پر حقایقو او واقعیتونو سترګې پټول او ښو او بدو ټولو ته ښه ویل به د حل لار نه وي، که چیرې له اوسنیو نړیوالو رامنځ ته شویو شرایطو نه پرځای ګټه وانه خیستلای شي، سبا به بیا دغه شرایط هم نه وي، بیا خو به خبره لاپسې سخته شي، ځکه موږ خو دغسې یوه دوره هم تجربه کړه، چې نتیجه یې د ویجاړ شوي کابل کنډوالې دي او پر بې ګناه وژل شویو ډکې شوې هدیرې!!

میوند زموږ د ننګ ډګر دی
یا به کامران یوو یا به وبایلو سرونه.
"پښتو لنډۍ"

# انواع شخصیت

پوهنیار عبدالرشید
ننگرهار، پیداگوژی

شناسایی شخص عبارت از دسته بندی اشخاص و معلوم داشتن صفات و مشخصات هر دسته است. و اینکه فردی که در حال حاضر مورد شناسایی است در کدام دسته ممکن است قرار گیرد. به عبارت دیگر این شخص از چه دستهء است.

طبقه بندی افراد از لحاظ جسمانی یکنوع ازین ارزشن است. یکی از روانشناسان بنام ویلیم شلدن در پوهنتون کولمبیا سالهای متمادی مشغول مطالعه درین زمینه بوده است که افراد را بر حسب ساختمان جسمانی که دارند از لحاظ شخصیت دسته بندی کند. دوکتور شلدن متعقد است که رابطه میان ساختمان جسمانی و صفات شخصیت وجود دارد. مثلاً افراد راحت طلب یکنوع ساختمانی جسمانی مخصوص دارند و اشخاص عصبی نوع دیگر. این همان است که در میان افغانها بنام امزجه معروف بوده است و میگفتند افراد در یکی از چهار گروه بلغمی، سودایی، صفرایی و دموی مزاج قرار میگیرند و ساختمان جسمانی هر یکی از گروه ها مخصوص بخود و به ساختمان جسمانی گروه دیگر متفاوت است.

دوکتور شلدن سه نوع شخصیت را ازین لحاظ تقسیم بندی کرده است که عبارت است از اندومورف (Endomorph)، میسومورف (Mesomorph) و اکتومورف (Ectomoroph).

کسانی که از لحاظ ساختمان جسمانی چاق و پوست نرم دارند در طبقهء اندومورف و مردمان راحت طلب اند. این دسته از افراد نسبت به مردم مهربان و بسیار خوش گزران اند. کسانیکه بدن قوی به قول معروف چارشانه و بلند قد هستند از نوع میزومورف میباشند این دسته افراد فعال، قوی و پیشرو هستند.

دستهء سوم یعنی اکتومورف دارای بدن لاغر و استخوانهای ظریف هستند. این دسته گوشه گیر به کس تماس ندارند، به امور و وقایع و صداها وغیره بسیار حساس میباشند. از آنجا که به ندرت اتفاق می افتد که تمام افراد فقط درین سه گروه قرار بگیرند و هر یک منحصراً صفات همان گروه را داشته باشند. لذا دوکتور شلدن طبقه بندی خود را بر پایهء یک تا هفت قرار داده است. بنا برین وقتیکه نمره میدهد، هر چه نمره کمتر باشد مقدار صفات مربوط به آندسته را آن شخص کمتر دارد. مثلاً نمرهء شخصیت یک فرد ۲، ۴، ۴ میشود یعنی اینکه این شخص از لحاظ صفات شخصیت طبقهء اندومورف و میزومورف متوسط و از لحاظ صفات شخصیت اکتومورف که فقط ۲ است، پایین میباشد.

دوکتور شلدن متعقد است بر حسب این نوع طبقه بندی و نمره گذاری میتوان شخصیت هر فرد را توصیف کرد.

همچنان دوکتور کارل یونگ روانشناس معروف سویسی متعقد است که افراد بشر میتوان به دو دسته بیرون گرا و درون گرا تقسیم کرد.

بیرون گرا کسی است که تمایل به جهان خارج از خود دارد و درون گرا فردی است که متوجه خود و درون خویش است. یونگ متعقد است که همه افراد هر دو جنبه را دارا هستند ولی چون یک حالت فرد بر حالت دیگر فرق دارد، که جز یکی از آن دو دسته قرار میگیرد. بطوریکه گفته شد شخص بیرون گرا توجه اش به امور دنیا است و به اصطلاح واقع بین است، ولی برعکس درون گرا کسی است که سرگرم افکار و عقاید خویش است و کمتر به امور خارج از خود توجه دارد. از روی این خصوصیات معلوم دارید که شما مربوط به کدام دسته هستید. یونگ نمی گوید که کدام دسته نسبت به دسته دیگر برتر است و فقط میگوید که این دو دسته با هم متفاوت اند، هر یک از دو گروه دارایی صفات خوب و بد هستند.

قیض محمد فاروقي
د چکنوریو د لیسې تدریسي
مرستیال

# حکومتي چارواکي باید د افغاني معیوبینو ستونزې حل کړي.

د اسلام سپېڅلی دین د عدل، وروروګلوی، همکاری او خواخوږی په محور څرخېږي. که د اسلام

د عادلانه دین تاریخ په غور مطالعه او څېړنې لاندې ونیول شي. نو هره پاڼه یې د وروروګلوی او خواخوږی زرین بابونه انځوروي او انسانیت ته د ټولنیز عدالت او مرستې درس ورکوي. د کایناتو پالونکي هم له عدالت پالو او خواخوږو سره مینه ساتي تاییدوي یې او په دنیوي او اخروي بدلو او امتیازونو یې ویاړي.

که د صحت په هکله انسانانو ته پاملرنه وشي، نو څرګندېږي، چې نړۍ کې ګرد انسانیت په یوه بڼه رنګ، خوی او ټولنیزو عاداتو کې خیل خیل نه دي، د بدن د صحت او د اندامونو په بشپړه لړلو کې هم توپیر لري، ځینې د بدن د ټولو اندامونو له شته والي برخمن دي، ځینې له زېږېدا سره سم په اندامونو کې نیمګړې پیدا شوي دي او ځینې د وخت مختلفو اوښتونونو د اندامونو له قربانی سره مخ کړي دي، چې د افغانستان مجاهد ملت یې ړنه بېلګه ده. د څه وخت نه چې د ۲۳ کلن ناورین خزان د هېواد سمسور بڼ تر خپلې اغېزې لاندې راووست، نو ورو ورو یې له سمسور بڼ نه د ګلونو په رژولو پیل وکړ، چې د همدغې سلسلې په بهیر کې په بېلابېلو ساحو، ځایونو او پېښو کې ددغه اتل ملت باتورو بچیانو پښې، لاسونه او نور اندامونه د نذرانې په توګه د هېواد مخې ته وشیندل. تاریخ یې د قربانی ستر ګواه او ټولنه یې د نمونو ستره انځورګره ده. څه خو یې له پښو، لاسونو بې برخې کړه او څه نور یې د سترګو، غوږونو او داسې نورو نعمتونو محروم کړل.

د ملګرو ملتونو د معلوماتو له مخې همدا اوس د شپږو لکو نه تر اتو لکو پورې معیوبین په افغانستان کې له ستونزمن ژوند سره لاس او ګرېوان دي، دوی هر راز مرستې ته ضرورت لري او د اسلام عالي دین هم له معیوبینو سره د هر اړخیزې خواخوږی او همدردی ټینګار کوي. دوی باید د ژوند په ستونزمنو پړاونو کې له ډېرو بوجونو وبښل شي، دا ځکه چې الله ج دوی بښلي دي. د اسماني قانون قرانکریم څرګنده لارښوونه ده، چې فرمایي: " په ګوډ (معیوب) باندې د تکلیف او بار اېښودل نشته. د سپېڅلي قانون له دغې او داسې نورو مادو له مخې معلول او معیوب ازاد او خپلواک ګڼل کېږي.

تر کومې اندازې پورې چې د اسلام دين دوی ازاد پرېښي دي، بايد د دوی هغه ازادي څرګنده او ومنل شي. برسېره پردې چې د نرۍ د بشر د حقوقو پلويان د معيوبينو په هکله کومې پرېکړې کوي، ښايي هغه ومنل شي او په عمل کې څرګندې شي.

دا چې د قرانی قانون د پرېکنده دريځ په بنياد معلول او معيوب د بې نيازه خدای ج د يووالي د توغ د ساتلو او پورته کولو لامل د جهادي سنګر د ساتلو قرباني شوی دی.

ښايي موږ يې هم وبښو، درناوی يې وکړو، د ژوند د اړتياو د حل په باب يې غور وکړو او تر خپلې وسې ورسره مرسته وکړو. د وخت د چارواکو مو هم هيله ده، چې د دوی د ژوند د هوسا او ارام کولو په خاطر د زړه له تله ايماني ګامونه واخلي، ترڅو دوی په بېلابېلو څانګو او کاري پروژو کې تنظيم شي، چې له يوه لوري به خپلې ورځنۍ ستونزې حل کړي او له بلې لورې به د هېواد د بيا رغونې لپاره وړ فعاليتونه ترسره کړي.

## د ځان سعادت

که يوازې خپل سعادت وغواړو څه ګرانه خبره نه ده، مګر موږ غواړو، چې له نورو نه زيات مسعود شو او دا کار ډېر مشکل دی، ځکه چې نور هغومره مسعود نه دي لکه چې موږ يې تصور کوو.

"مونتسکوی"

ژباړن: نذیر احمد سهار
پېښور

# مړینل ښه دي که خبر جوړول؟

## سټیوارټ او مایلز ټي پرنې دوه رښتیني ژورنالستان

خبریالان او تصویر اخیستونکي د جګړې اورنیو سیمو ته ځي او په سختو جګړه ییزو حالاتو کې د جګړې بهیر د اخبار، رادیو او ټلویزیون له لارې د خلکو تر سترګو او غوږونو رسوي. د ورځپاڼو او راډیو ټلویزیوني شبکو خبریالان او ژورنالستان معمولاً د خبر له خپرېدا سره سم د ورځپاڼې او راډیو ټلویزیون له لارې خپل ځان او نوم ښیي. خو د نورو نړیوالو خبري اژانسونو لکه اسوشیټیډ پرېس، رویټر، فرانس پرس او ... کارکوونکي معمولاً په ورک نوم کار کوي.

هغوی د حقیقت او رښتیا جوتونې په خاطر پر ځان د جګړې او شخړو ډېر سخت او ترینګلي حالات زغمي. هغه ناویلې پېښې او خبرونه رابرسېره کوي، چې د نړۍ پر ګټو او څکو غوږونو لا نه وي لګېدلي.

د اسوشیټیډ پریس کاناډایي خبریال سټیوارټ وایي: "زه پر دې ویسا یم، چې د نړۍ هر وګړی باید د خپلو تورو د بیان لپاره یوه تګلاره ولري".

سټیوارټ هغه ژورنالست دی، چې د سیرالیون د کورنیو جګړو د خپرولو او پر هغو د خبر جوړونې پر مهال پر سر ولګېد او ټپي شو. دغه ټپ د نوموړي ښي لاس شل او کینه پښه یې له کاره وغورځوله. خو مړ نه شو.

له سټیوارټ سره د خبر موندنې او د رښتیا د انځورولو په یون کې د اسوشیټیډ پریس فوټوګرافر یا فوټو ژورنالست او د خبري تولید مسوول مایلز ټي پرنې هم ملګری و. خو د هغه د ژوند ستوری نور د ځمکې په اسمان کې نه ځلېده.

سټیوارټ د نورو ژورنالستانو په څېر، چې د خبر موندنې او خبر جوړونې لپاره د نړۍ ډېر نړۍ او درانه واټنونه وهي. له بهرنیو خبري رسنیو او اژانسونو سره د کار ډېر لېوال و. رومانتیکې پېښې، بهرني موقعیتونه، هېښنده سیمو ته ورتګ او... کله چې دا هرڅه رامخې ته کېږي. د "زه خم" حالت په رښتیا، چې رومانتیک او زړه رابښکونکی اړخ لري، چې د سعودي عربستان د لارنس پېښې یې یوه ښه بېلګه وړاندې کولای شو.

ستيوراټ په ۲۷ کلنۍ کې د اسوشيټيډ پريس خبري اژانس غړيتوب ترلاسه کړ او دا يوه داسې دنده وه، چې نوموړي يې افغانستان، هند، پاکستان، کامبوج، ويتنام او... هېوادونو ته په سفر کولو او خبر تهيه کولو اړ کړ، تر دې چې پينځه کاله وروسته په ۳۲ کلنۍ کې د افريقا په لويديز کې د اسوشيټيډ پريس خبري اژانس د دفتر مسوول وټاکل شو.

د ۱۹۹۹ کال د جنوري په مياشت کې، چې کله "ستيوراټ" او "ټي پرني" سيراليون ته لاړل، هلته د جنګ او شخړو اته کاله اوښتل، دغه جګړه د نړۍ د نورو جګړو په څېر همغسې وحشيانه جګړه وه او د هغې په ترڅ کې په زرګونو ولسي خلك له تېغه تېر او مثله شول. د باغي ځواکونو او دولتي سرتېرو ترمنځ د جګړې تر تولو کرکجنه او زړه بوږنوونکې کرنلاره د خلکو د غړيو غوڅول و.

ستيوراټ او مايلز ټي پرني تر يوه مهاله په سيراليون کې اوسېدلي وو، اوس يې چې بيا د سيراليون پر خاوره ګامونه ايښي وو، ستيوراټ له يوه بد احساس سره مخ شو، هغه وې ښايي دغه کار بې پايلې راووځي، خو دغه احساس دومره دوام ونه کړ او دې يې له خپلې تګلارې څخه بې لارې او راتم نه کړ.

باغي سرتېري د سيراليون پلازمينې "فري ټاون" ته رسېدلي وو او دوارو ژورنالستانو غوښتل، چې د باغيانو لومړۍ کرښې ته ورشي، دولتي ځواکونو په پيل کې نه غوښتل، چې دوی لومړۍ کرښې ته لاړ شي او له هغه ځايه د جګړې په باب رپورټ او تصويرونه برابر کړي، هغوی پوهېدل، چې لومړۍ کرښه د "ستيوراټ" او "ټي پرني" لپاره ډېره خطرناکه او ځان مرګي تمامېدای شي، خو په درېيمه ورځ "ستيوراټ" او "مايلز ټي پرني" پردې وتوانېدل، چې له دولتي کاروان سره د جنګ لومړۍ کرښې ته لاړ شي او هلته د پېښو او حالاتو سم جاج واخلي.

کله چې کاروان پر مرمۍ ورولو پيل وکړ، دوی دومره لاته و ورنږدې شوي، چې موټروان يې موټر بېرته ګرځولو ته چمتو کړ، ژر نيوياركي "ټي پرني" چې کلونه کلونه يې د افريقا خپلمنځي جګړې په تصويري بڼه تر نړيوالو رسولې وې، پر موټروان غږ کړل، چې مزله ته دوام ورکړي.

"ستيوراټ" مخکې له مخکې د ژوند بايللو احساس کړی و، "ټي پرني" هڅه کوله، چې زړه يې ورټينګ کړي، هغه وويل: "ستيوراټ چوپ شه!! که څه درپېښ شول، په دې ناولي هيکل مې درتېر يم".

پينځه دقيقې وروسته د باغيانو يوې ډلې، چې په يوه شاړه کوڅه کې يې پټګن نيولی و، پر موټر بريد وکړ، دغه بريد له څو ثانيو څخه اوږد نه شو، يوه مرمۍ د "ستيوراټ" پر سر ولګېده، خو هغه څه ونه ويل، ګولۍ پر تندي لګېدلې وه او د جمجمې په وروستۍ برخه کې پاتې شوې وه، د اسوشيټيډ پريس نورو همکارانو د درملنې لپاره دی تر لندنه ورساوه، خو رنځپوهانو يوازې شل په سلو کې ددې امکان ورکاوه، چې "ستيوراټ" ژوندی پاتې شي.

"ستيوراټ" چې کله د اغما او بې سدۍ له منګولو ووت او راسم شو، وايي "مور مې د کټ ترڅنګ ناسته وه، سترګې مې نه شوای ور اړولی، ترې ومې پوښتل: "پر مايلز څه شول؟" ويې ويل: "هغه خو مړ شو!!".

"مايلز ټي پرني" له بريد سره سم وژل شوی و، "ستيوراټ" خواشينی شو، چې په خبري رسنيو کې دومره هم نه ونمانځل شوي، چې کار او پېښې يې د خبري رسنيو له لارې په خلکو کې يو غبرګون مونډلی وای.

کله چې له روغتونه خارج شو، د خبري رسنیو له مدیرانو او مسوولینو څخه یې وغوښتل، چې سیرالیون ته د دو د سفر په اړه خپاره شوي خبرونه وروسپاري. خو داسې ښکارېده، چې امریکایي ورځپاڼو او خبري رسنیو د دوی په اړه هېڅ هم نه وو خپاره کړي.

هغه وایي تر ډېره مې انتظار وکړ، خو چا هم راباندې خبر جوړ نه کړ، وروسته مې له ځان سره وویل: "ای لویه خدایه!! دا ټول د هېڅ په خاطر؟! هېچا هم راته ونه کتل".

یو کال وروسته "ستېوراټ" په خپله لومړنۍ مقاله کې، چې اسوشیټډ پریس ته یې لیکلې وه، وویل: نور نه غواړي د نړیوالو پېښو د بربنډتیا لپاره خپل ځان د مرګ کومې ته یوسي، نړۍ یې که دا ځل کار ته پام هم وکړي، لاس به ورنه وړي".

د ۲۰۰۰ ز کال د مۍ په میاشت کې یو ځل بیا د اسوشیټډ پریس خبري اژانس یو بل فوټو ژورنالست "میګویل کیل موره نو" د رویټر له یوه تکړه ژورنالست "کورت شورک" سره ګډ ووژل شول، اسپانوي "موره نو" د خپل کار له خطرناکو پایلو خبر و، هغه له "پرنې" سره په افریقا کې کار کړی و او په نیویارک کې یې د نوموړي په جنازه او فاتحه کې ګډون کړی و، ټې پرنې او موره نو ۲۴م او ۲۵م ژورنالستان وو، چې د اسوشیټډ پریس د بنسټ ایښودو او جوړښت له پیله تراوسه ووژل شول.

"موره نو"، "ستېوراټ" ته نه و ویلي، چې د خبر موندنې لپاره سیرالیون ته ځي، خو کله یې چې پر مرګ خبر شو، غوسې واخیست او ویې ویل: دې لعنتي دا کار ولې وکړ؟.

خو "ستېوراټ" وروسته پوه شو، چې هغه هم دده په څېر فکر و اند درلود، هغه غوښتل، چې د پېښو په بربنډتیا سره خلکو ته د بیان او خبرو جرئت ورکړي او د ناویلو څېزونو په ویلو یې راولــــــــــــــــــــــي.

**دوه ملګري د دوو لاسونو غوندې د یو بل خیري مینځي.**

*"حضرت محمد ص"*

# بشري مرستې

حاجي عمرا خان "منیب"
ننګرهار

په زیاتو وختونو کې بشري مرستې د انساني غمیزوپه راکمولو کې ډېر اغېزمن رول لوبولی شي او د کړېدلیو خلکو په تېره بیا د شخړو او مهاجرتونو پر مهال ډېرې اساسي ستونزې لکه ښوونه او روزنه او روغتیایي چارې او داسې نورې کېدای شي، چې د بشري مرستو په وسیله تر یوه حده حل شي او د اغېزمن شوو خلکو په ټپونو د ملهم پټۍ کېږدي، خو له بلې خوا که چېرې همدغه بشري مرستې د جنګ سالارانو لاس ته ورشي، نو کېدای شي، چې د شخړو او جنګ جګړو د تداوم سبب وګرځي. د بېلګې په توګه جنګ سالاران کولای شي، چې د وړیا مرستو په ترلاسه کولو سره خپل جنګیالي او هغه وسایل، چې د جنګ د تداوم لپاره ترې کار اخیستل کېږي،لاپسې زیات او تقویه کړي. دا روښانه ده که د بشري مرستو د وېشلو او د هغو د وروسته پاتې اغېزو په اړه کوم غښتلی مېکانېزم نه وي موجود، نو په دې صورت کې مرستې اصلي مستحقینو ته نه رسېږي، د اړمنو خلکو کړاوونه ورځ په ورځ زیاتېږي.

د مرستو په ځای نه لګښت ددې سبب ګرځي، چې مرستندویه ټولنې بیا د مرستو ورکولو ته زړه نه ښه کوي او د اړمنو خلکو کړاوونه لکه مخکې. چې ورته اشاره وشوه، یوې ورځې څخه بلې ورځې ته لاپسې زیاتېږي او په پای کې اړمن خلک، چې د مالي او نورو سرچینو د نشتوالي له کبله یوازې په بشري مرستو متکي وي، دومره اغېزمن کېږي. چې تر ډېره وخته یې بیا دغه ډول منفي اغېزې په ژوند کې راڅرګندېږي.

د یو شمېر نړیوالو خبري او خپرنیزو سرچینو په استناد هسې، خو افغانانو سره په هېواد کې د شخړو د پیل راهیسې پټ پناه او په ځینو وختونو کې ښکاره مرستې هم کېدې، خو کله چې د مجاهدینو لومړنی لندمهاله حکومت جوړ او ددې ترخنګ په روسانو د اقتصادي فشار او د جنیوا معاهدې له مخې یې د افغانستان نه په وتلو پیل وکړ، نو یو شمېر مرستندویه ټولنو په ډېر صادقانه ډول عملاً د خپلو مرستو بهیر چټک کړ، چې په افغانستان کې د اوږدې مودې په ځینو پروژو سمدلاسه کار پیل کړي. لکه د سړکونو اولویو لارو بیا ودانول او د هغو فابریکو بیا جوړول پکې شامل وو، چې د هېواد د اقتصاد اصلي اډانه ګڼل کېږي،خو له بده مرغه په افغانستان کې داخلي ګډوډیو دې ته لاره هواره کړه، چې دغه پیسې یا بېرته تادیه شي او یا خو په داسې پروژو ولګول شي، چې اقتصادي اغېز یې دومره زیات نه و.

بنایي دا به هم یو حقیقت وي، چې د شخړو د موجودیت په صورت کې د اوږدې مودې پروژې نه شي تطبیقېدای او یوازې په عاجلو مرستو بسنه کېږي، چې معمولاً د عاجلو پروژو تطبیق په اقتصادي لحاظ دومره زیات ګټور نه وي، خو ددې ترڅنګ د لنډې مودې لپاره ددغه ډول پروژو د ښو اغېزو نه هم سترګې نه شي پټېدای، چې د اړتیا په بنا جوړې او تطبیق شوې وي.

دا به تاسو ټول راسره ومنئ، چې له افغانستان سره د شوو مرستو په اړه د دقیقو معلوماتو راټولونه به ډېر وخت او امکاناتو ته اړتیا ولري، خو هغه معلومات، چې د کومکونو د انسجام ادارو له خوا وخت په وخت وړاندې کېږي، که په پرتلیز ډول یې اقتصادي اغېزې تر مطالعې لاندې ونیول شي، نو دومره د ډاډ وړ نه برېښي.

زما په اند که په راتلونکي کې د افغانستان اسلامي حکومت او مرستندویه ټولنې د داسې پروژو په تطبیق لاس پورې کړي، چې د راتلونکي وخت لپاره یې تداوم یقیني وي، لکه دلویو لارو جوړول، د صنعتي فابریکو بیا رغول او د یو شمېر داسې نورو پروژو تطبیق، چې په خپل عاید متکي وي، ځکه چې ددا ډول پروژو تطبیق نه یوازې دا چې د اړتیا وړ خدمتونو د پایښت سبب ګرځي، بلکې د هېواد د اقتصاد په تقویه او خلکو ته دمناسبو کارونو په برابرولو کې هم ډېر ګټور تمامېږي.

# د سکهه مذهب افغانستان ته راتلل

جگر شینواری

ځینې دا فکر کوي، چې د سکه مذهب د مهاراجه رنجیت سنګ په وخت کې افغانستان ته راغلی دی، خو خبره داسې نه ده، ځکه کله چې په (۱۵۹۵م) کال کې بابا نانك له عربستان څخه بغداد او بیا وروسته افغانستان ته راغی، نو د افغانستان د اهل هنود په ټولنه کې یې کابل (بابر باغ او شوربازار) او خورد کابل کې برخه واخیسته.

بابا نانك صاحب له خبرو او تبلیغ وروسته د حاضرینو عقیده او اخلاص په بابا نانك صاحب زیات شو او د هغه درناوی به یې کاوه.

د سکانو د دوم ګورو په وخت کې له افغانستان څخه ځینې اهل هنود هند ته لاړل، ترڅو د بابا نانك د لارې پیروانو او دویم ګورو څخه زیات معلومات ترلاسه او بېرته خپل هېواد ته راستانه شي او د بابا نانك د پیروانو او د لارې د طرفدارانو ښېګڼې او د هغوی لارښوونې په خپل هېواد افغانستان کې اوسېدونکیو اهل هنود ته ابلاغ کړي، نوموړو تللو راتللو وکړای شول، چې د بابا نانك د لارې او ځای ناستو هدایتونه قدم په قدم وڅاري ، ترڅو د مهاراجه رنجیت سنګه په وخت کې د لسم ګورو ګرو ګوبند سنګه هغه حکم نامه، چې په (۱۶۹۹م) کال چې د (۱۰۱۰) لمریز کال سره سمون خوري، خپل پیروان راټول او هغوی یې سره منظم کړل. د لسم ګورو په عسکري مهارتونو ټینګار کاوه او د قربانۍ روحیه یې د خپلو پیروانو لپاره تبلیغ او پیاوړې کړه.

کله چې د سکه مذهب پیروان د پنجاب علاقې د (ګیس ګړ) نومې ځای په (انند پوري) کې د خپلو پیروانو ډله راټوله کړه او خپل پیروان یې د سکه په نامه ونومول. د سکه کلمه پنجابي لفظ دی، چې د سانسکریت د سیسن یا شیشي کلمې څخه اخیستل شوې ده، چې د زده کوونکي مانا لري.

یاني ټول سکهان ځان د ګروګوبند سنګه شاګردان بولي.

همدا شان په دې ورځ د هر نارینه سکه د نوم په اخر کې د سنګه (چې د سردار

همدا شان یې خپلو پیروانو ته لارښوونه وکړه، چې د بابانانك صاحب له هدایت سره سم لاندې پېنځه صفات په کلکه ولري او ومني:

۱_ د خدای عبادت کول.

۲_ د بې وزلو خلکو سره مرسته.

۳_ د خلکو په منځ کې وروري او برابري.

۴_ په کلکه زیار ګالل او کار کول یاني ځان ته حلاله روزي پیدا کول.

د لاندې څلورو ګناهونو څخه ځان په کلکه ژغورل:

۱_ زنا کول.

۲_ د تنباکو استعمال

۳_ د وېښتانو لنډول او بې عزتي کول.

۴_ د بل مذهب پیرو د لاسه د حلال حېوان د غوښې خوړل او حېوان په یوه ضربه حلالول.

د ګرو ګوبند سنګه د پورتنی تاریخي ټولنې وروسته یې یوه حکم نامه د ټولې نړۍ سکهانو ته صادره کړه. همداشان د دې حکم نامې یوه کاپي یې د افغانستان سکهانو ته راولېږله، چې اوس هم د ننګرهار ولایت د جلال اباد په ښار کې د بابانانك صاحب په درمسال (ګوردواره) کې شته دي او بله کاپۍ یې د کابل په ټولو درمسالونو کې شته دي. (ذکر یې دمخه شوی دی).

باید وویل شي، چې د سکه مذهب داسې پیروان هم شته، چې ځان د پنځه کامه په مراعات کولو مکلف نه بولي او د سکه مذهب داسې پیروان د (سیج تاري) په نوم یادوي، چې د سکه مذهب داسې پیروان د نړۍ په ډېرو هېوادونو کې شته دي په افغانستان کې یې زیاتره په خوست، ننګرهار او کابل کې اوسېږي.

د سکهانو د دې پیروانو ژبه پښتو او ټول کړه وړه یې له پښتنو سره هېڅ توپیر نه لري.

**بې دینه سړی انصاف نه لري.**

"حضرت عمر رض"

# د ماشومانو لپاره غوره کیسې

لیکوال: سید داود زهدي
ژباړن: څېړونکی هاشمي

د ماشومانو لپاره د کیسو ارزښت لري. هغه کیسه چې ښکلې او ماهرانه توګه وویل شي، کولی کېدای شي ښه کیسه د ماشوم په زړه کې یې کښېني، سترګې یې ور پیاوړې کړي.

خو بده او ناوړه کیسه. هغه بدرنګي پر ښکلا. خرابکاري پر بریالی کېږي، هغه کیسه چې کوي، په عمومي ډول په ښېګڼو، ښکلاوو، رغونې او ضدیت رامنځ ته کوي او کېدای پایلې او نتیجې له ځانه سره

لکه څنګه چې سره زر (طلا) کیسو د کرکټرونو اخلاقي د ښېګڼو او نیکیو ارزښتونه، کیسو پشتوانه جوړوي. له کیسه واقعاً ښوونیز او روزنیز

که چېرې یو ماشوم ته داسې ماشوم تحقیر یا وهل او ټکول لاندې کېږي، ماشوم په غیر ارادي هر هغه څه چې ښکلي او انساني راډیو او ټلویزیون د هغې په هکله له خوا وهل ټکول، تهدیدول او د ځواکي او کمزوري یو واقعیت دی.

مینډې پلرونه باید هېڅکله کیسې ونه وایي. ځکه چې حقارت او ناتوانی احساس روحیاتو ډېرې ناوړې اغېزې

میندې، پلرونه او خپلو ماشومانو لپاره داسې چې کرکټرونه یې زړه ور، خیر ښېګڼې د عمل خاوندان

انتخاب ډېر ستر اهمیت او او ښه وي او ماشومانو ته په سمه شي، چې ښه قوت او اغېز ولري. خاطر او ذهن کې پاتې شي او په پرانیځي، پوهه او عقل یې

کیسه چې بدي پر نیکی، رغونې او آبادۍ بر لاسې او ستر ستر واقعیتونه بې اعتباره ماشومانو کې په تدریج سره د جوړونې په وړاندې مقاومت او شي دغه مساله ډېرې ناوړې ولري.

د پیسو ملاتړ او پشتوانه ده، د ارزښتونه، انساني ارزښتونه او سربښندنې او ځان تېریدنې د همدې امله ویلای شو، چې ښه ارزښت لري.

کیسې ویل کېږي، چې پکې کېږي او انساني حقوق یې تر پښو توګه دې نتیجې ته رسېږي، چې دي، مور او پلار، ښوونکي، خبرې کوي، ښځایه دي. د لویانو زورورو په مقابل کې دده بې

خپلو ماشومانو ته دغه ډول دغسې کیسې په ماشوم کې د پیاوړی کوي او د ماشومانو په لري.

ښوونکي باید هڅه وکړي، د کیسې انتخاب او ووایي، سربښندونکي، د ښه غوره او وي او هغه وکړای شي، چې

پخپل کوچنې اوربدونکي کې د ښه والي، خیر ښېګڼې کولو او له ستونزو سره د مقابلې، مبارزې او مقاومت کولو احساس او روحیه راوپاروي او پیاوړی یې کړي.

پوهندوی معروف شاه شینواري
ننګرهار

# معیاري لهجه

لهجه او ژبه یو له بل سره د تعریف له مخې فرق نه لري، بلکې د سیمې او تلفظ له مخې یې فرق سره لري.

"هیوز" وایي:" څه شی، چې ژبه نه وي لهجه ده". یعنې که چیرې یو ډله ایز ګروپ داسې خبرې وکړي، چې افهام او تفهیم په ښه توګه صورت ونیسي او په یوه سیستم (له ګرامري پلوه) جوړښت څخه استعمال شي، هغه یوه ژبه ده او که یوه ژبه یا لهجه د سیستم له پلوه له بلې ژبې سره فرق ولري، د ګرامري سیستم له مخې د دوی په منځ کې فرق وي او د افهام او تفهیم پر اساس اختلاف ولیدل شي، هغه بېله ژبه ده.

ژبه د لهجو مجموعه ده، هره لهجه بیا له فردي لهجو څخه منځ ته راغلې ده، فردي لهجه د خلکو د ګړېدا، شخصي لهجه یانې د خلکو په جدا توګه تکیه کلام یا فردي لهجه د خبرو کولو فردي اشکالو ته وایي. یا په لنډه توګه ویلای شو، چې فردي لهجه عبارت ده د یوه خاص شخص د ګړنیو عاداتو له مجموعې څخه په یوه ټاکلې دوره کې.

اوس به راشو معیاري لهجې ته، معیاري لهجه هېڅ وخت له منځه نه ځي، یوازې سیاسي او اقتصادي سیادت کېدای شي، بله ډله قدرت په لاس کې واخلي. د پښتو اوسنۍ معیاري لهجه د ننګرهار، کندهار، شیوه کیو او د کابل له شاوخوا سیمو څخه ترکیب شوې ده.

پښتو ژبې نیم معیاري شکل د احمد شاه بابا په وخت کې، چې د افغانستان پایتخت په کندهار کې و، درلود. دا هغه وخت و، چې سیاسي قدرت د احمدشاه بابا په لاس کې و. کله چې د تیمورشاه په واسطه پایتخت له کندهار څخه کابل ته رانقل شو، کندهار خپل ادبي ماهیت ورو ورو له لاسه ورکړ، ځکه سیاسي او اقتصادي اړیکیو په مرکز پورې ارتباط ونیو. د پښتو ژبې نیم معیاري شکل، چې په کندهار کې یې د احمد شاه بابا په وخت کې موجودیت درلود، علت دا و، چې د ننګرهار، وردګو او داسې نورو ځایونو د قلم خاوندان او لیکوالان منځ ته راغلل. د یوې لهجې د خلکو د خوا نه کتابونه ولیکل شو، هغه و، چې پښتو ژبې نیم معیاري شکل هغه لوري ته مخه وکړه.

دا چې په پښتو ژبه کې کومه شفاهي معیاري لهجه ولې نشته؟ ددې دلیل به دا

وي، چې د پښتو لهجو څخه هېڅ یوې هم داسې کوم متداول اجتماعي مقبولیت نه دی پیدا کړی، چې هغه دې په شعوري ډول زموږ تروخته پورې رارسېدلی وي او بیا دې د معاصرې معیاري پښتو د منځ ته راتلو او تعمیم سبب ګرځېدلی وي.

د معیاري پښتو په برخه کې که یوازې تحریري شکل پاتې کېږي او که شفاهي شکل، دواړه یې غوره دي.

حبیب الله "تږی د پښتو د معیاري کېدو په هکله خپل پیشنهاد داسې وړاندې کوي: "زما لومړنی پیشنهاد دا دی، چې باید سیاسي او ثقافتي مسایل تل په نظر کې وي، یانې په هر صورت کې د معیاري پښتو د عاملو او پوره جوړولو د پاره دا ضروري ده، چې سیاسي او ثقافتي مسایل (قدرت) په نظر کې ونیسي، که نه هر ډول کوشش به بې ځایه وي".

۱_ کله که موږ غواړو، چې یوه لهجه معیاري وګرځوو او نور لغت لکه اصطلاح، ترکیبونه او همدارنګه نور شیان باید له نورو لهجو ورته راټول کړو. البته که ووایو، چې دا لهجه د کومې لهجې وي په دې برخه کې د هغو شرایطو په نظر کې نیول ضروري دي، چې د نوي معیاري لهجې د منځ ته راتلو او تعمیم کې یو اساسي نقش ولري.

۲_ د ویونکیو د شمېر زیاتوالی دی.

۳_ له ګاونډیو ژبو سره نږدېوالی، ځکه دا وروستی مسئله زموږ سره د پښتو په تعمیم کې ډېره مرسته کوي، هره ژبه په هره دوره کې معیاري لهجه لري.

د شفاهي معیاري لهجې د منځ ته راتلو لپاره:

۱_ سواد ضروري شرط دی. دا په هغه صورت کې کېږي، چې خلك سواد ولري، مثلاً زموږ په سلو کې ۹۵% خلك نالوستي دي، موږ باید خلك لوستي کړو، د مطبوعاتو د لارې باید دې ځای ته ځان ورسوو، زده کړه، د شفاهي معیاري لهجې د منځ ته راتګ لپاره زیات رول لوبولی شي.

۲_ هرڅومره، چې یوې ژبې ته کار کېږي، په هماغه اندازه ژبه معیاري شفاهي او هم معیاري تحریري شکل ته نږدې کېږي.

۳_ ژبه باندې کار کول هغه سیاسي او اجتماعي ادبیات دي، چې باید ثبت شي او بله دا چې په هغه ژبه باندې کتابونه زیات ولیکل شي. معیاري لهجه هغه لهجه ده، چې اکثریت خلکو ته اسانه وي او اکثریت خلك خبرې ورباندې وکړي.

معیاري لهجه د نورو لهجو لپاره یو میزان دی، چې نورې لهجې ورسره مقایسه کېږي. په دغه لهجه باندې باید هرڅه ولیکل شي.

په خپله معیاري لهجه دوه اهمیته لري:

۱_ له یوې خوا د ټولو لهجو لغاتونه یو له بل سره مقایسه کېږي.

۲_ معیاري لهجه د نوې لپاره، چې نااشنا ژبه زده کوي ډېرې اسانتیاوې منځ ته راوړي.

د تحریري معیاري لهجې لپاره کار کول اسان کار دی، خو د شفاهي معیاري لهجې لپاره کار کول سخت دی، د راډیو د نطاق خبرې شفاهي معیاري لهجه نه ده، بلکې تحریري معیاري لهجه ده، په دې ځای کې د نطاق لهجه ډېره مهمه ده، خو په هغه وخت کې، چې له کاغذ څخه غږېږي او بیانیه ورکوي، بیا خپله د هغه نفر شفاهي لهجه ده.

د نړۍ ژبې تحریري معیاري شکل لري، هره هغه ژبه، چې په رسمي توګه په دفترونو کې کار ځینې اخیستل کېږي، تحریري معیاري شکل لري. بنایي اکثره ژبې تر یو وخته معیاري شکل ونه لري، لکه پښتو ژبې له احمدشاه بابا څخه مخکې غیر معیاري بڼه درلوده، خو شفاهي معیاري لهجه ډېرې ژبې نه لري، مثلاً پښتو تحریري معیاري شکل لري، خو شفاهي معیاري شکل نه لري. په نړۍ کې اکثره ژبې لکه د فرانسې (پاریس) او انګلستان ژبې بیا هم تحریري معیاري شکل او هم

شفاهي معياري شكل لري، خو پښتو او دري ژبه شفاهي معياري لهجه نه لري او نه يې مراعات کولی شي، ځکه ټول خلك په خپلو لهجو باندې، چې له خپلې سيمې څخه يې خپلې کړې غږېږي، هر يو چې خبرې کوي، نور خلك پرې پوهېږي، چې دا د کوم ځای او سيمې دی.

## د معياري لهجې منځ ته راتګ:

له ۱۵ پېړۍ څخه مخکې په يونان کې (Attick) لهجه وه، چې تحريري معياري شکل يې درلود، علت يې اقتصادي او سياسي قدرت لاس ته راوړل و. کله چې د يوې ټولنې يو ګروپ خلك، چې د يوې لهجې خاوندان وي، سياسي او اقتصادي قدرت لاس ته راوړي، نو هغه ژبه تحريري معياري شکل ته نژدې کېږي او د وخت په تيرېدو سره تحريري معياري شکل غوره کوي. لکه د پښتو ژبې د ننګرهار او کندهار ليکوالانو، چې يو وخت يې په خپله لهجه زيات کتابونه وليکل، خو دا شمېر خلك د يوې لهجې خلك و، ځکه پښتو ژبې نيم معياري شکل غوره کړ. د پکتيا خلکو او همدارنګه نورو خلکو دومره برخه نه وه پکې اخيستې.

د دري ژبه په مرکز کې ويل کېده او دولتي موقف يې هم درلود، علت يې سياس قدرت و، چې د دري ژبې ويونکيو لاس ته راوړ. هغه خلك، چې د لوړې طبقې وو، نورو خلکو لکه ريسانو او نورو دولتي موقف والا خلکو به د هغوی لپاره ډېر ښه کليمات استعمالول او نور غريب خلك پرې نه پوهېدل، دغو ريسانو او لوړ موقف والا خاوندانو د لوړې طبقې عادات او رسوم ياد کړي وو. همداسې خلکو دولتي موقف هم درلود، په رسومو او عاداتو کې ټيټې طبقې د لوړې طبقې عادات قبلوي، خو ټيټه طبقه چې څومره ښه عادات ولري، بيا يې هم خلك نه ورسره مني. لکه په تېرو وختونو کې به د غريب زوی د لوړې طبقې د خلکو په خبر واده کاوه، همدا علت و، چې خلکو ته به د لوړې طبقې عادات ښه برېښېدل. که به يې عادات وانه خيستل، وروسته پاتې به معلومېده. مثلاً لوړې طبقې خلکو به په يوه شپه په زرهاو روپۍ په قمار بايللې، د موټرو د تيلو لګول، کارتوس به يې خاورې کول، ښکار ته به ولاړل، خلکو به ورته ښه ويل، خو غريب سړي به چې يوه جوړه څپلۍ دوه روپۍ ګرانې واخيستلې، خلکو به ورته احمق وايه، په حقيقت کې په خلکو باندې قضاوت د دنيا د مال او تاوان له مخې و، لکه څنګه چې د لوړې طبقې عادات خلکو ته ښه معلومېده، همدارنګه د لوړې طبقې د خلکو لهجه هم د غريبې طبقې د خلکو لپاره ښه او درسته معلومېده، همدا علت و، چې ټيټې طبقې د لوړې طبقې د خلکو عادات او رسوم قبلول د همدغې منلو په نتيجه کې وو، چې دري ژبې معياري او شفاهي معياري شکل غوره کړ. -

وطنه ستا مينې کافر کړم
قبله په بله سجده ستا لور ته کومه.

"پښتو لنډۍ"

پوهنیار عبدالوحید
ننگرهار

د ختیځ سبک د معمارۍ د فن شهکار

# د مینې تاج او د مینې محل



کله، چې په پنځلسمه میلادي پېړۍ کې مغلي مسلمانانو هند ونیوه، دوی خپل پارسي Parsian کولتور او دودونه له ځانه سره هند ته ولېږدول. په تعمیراتي یا ساختماني چارو کې د هندو مغولانو یوه روښانه بېلګه دشپاړسمې پېړۍ هندو - پارسي نقاشي دي، چې آثار یې تراوسه هم د هند په مختلفو نقطو کې تر سترګو کېږي. د مغولانو د واکمنۍ د دور د اهمو کرکټرونو څخه یو هم شاه جهان او د هغه زوی داراشکوه (Dara Shukoh) دی، چې د هغو د واکدارۍ د مهال د ساختماني په زړه پورې ښې په ضرب شوې سکو

او تشریفاتي پاتې شونو کې لیدل کېږي.

په هند کې د مغولانو د سلسلې د پاچاهانو په واسطه د ښکلایزو ساختماني کارونو په لړ کې، چې د دوی د زیات شهرت موثر عامل ګڼل کېږي، د زیارت جوړونکیو فنکاري ده، کوم چې د غربي هېوادونو د اسلامي تمدن سره، چې په خپلو آثارو کې تر ډېرو زیات د ګچ څخه کار اخلي، زیات توپیر لري.

د مغلي امپراتورانو دا معمول و، چې د خپل ژوند په دوران کې باید د استوګنې لپاره یوه ډېره ښایسته ماڼۍ جوړه کړي، داسې چې د ژوند په پای کې د هغه څخه د یو ښکلي زیارت په توګه استفاده وشي. د نوموړو زیارتونو او مقبرو څخه تر ټولو نامتو د هند په اګره کې د تاج محل (Taj Mahal) ماڼۍ ده، چې نړیوال شهرت لري.

شاه جهان د مغولي کورنۍ پينځم پاچا د خپلې ګرانې مېرمنې بانو بیګم د ممتاز محل، د یادګار د تلپاتې والي لپاره د هغې تر مړینې وروسته د هغه لپاره ښکلې هدیره بنا کړه، چې ددې مقبرې نوم یې تاج محل (چې د هغه د مېرمنې د لقب ممتاز محل تحریف دی) کېښېښود.

بانو بیګم د جهانګیر دارتینې ملکې نورجهان د وررور آصف خان لور وه او د ۱۰۲۱ ق کال د ربیع الاول په نهمه نېټه د شل کلنۍ او یا هم د یوویشت کلنۍ په عمر د شاه جهان په نکاح کې شوه.

شاه جهان په داسې حال کې د ممتاز محل سره واده وکړ، چې د خپلې پخوانۍ مېرمنې څخه یې یو زوی هم درلود. له بانو بیګم څخه څوارلس اولاده زېږېدلي دي. بیګم د ۳۹ کالو په عمر په ۱۰۴۰ ق کال د ذیقعدې په ۱۷ نېټه د لنګون د پېښې په اثر د برهانپور په ښار کې ددې فانۍ نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

دبانو بیګم جنازه په برهانپور کې خاورو ته وسپارل شوه، خو شاه جهان، چې د خپلې مېرمنې له مړینې څخه ډېر متاثر شوی و، هوډ وکړ، چې د بانو بیګم د مینې د خاطرې د تل ساتلو لپاره یو ښکلی زیارت جوړ کړي. له دې کبله یې د بانو مړی له برهانپور څخه یووړ او د اګرې په ښار کې یې ښخ کړ او وروسته یې د پنځوسو لکو کلدارو په لګښت د تاج محل په نوم یوه هدیره جوړه کړه. د ملحقه ودانیو په ګډون ددې زیارت جوړونه سره له دې، چې شل زرو تنو په مسلسل ډول ورباندې کار کاوه، له دوه ویشت کالو څخه زیات وخت ونیو.

د تاج محل د جوړولو لپاره شاه جهان د یو روایت له مخې د هند له ټولو ایالتونو، سمرقند، بخارا، فارس، قسطنطنیه او عربو څخه او د بل روایت له مخې د آسیا د لویې وچې نامتو کارپوهان او مهندسان هند ته راوبلل او د ټولو مطروحه نقشې تر غور لاندې ونیول شوې. په پای کې د ځینو پوهانو په آند شاه جهان د ترکي تبعه استاد عیسی نقشه خوښه کړه، خو د صنعت او تمدن د کتاب په حواله د ماڼۍ د ساختمان طرحه د درېو تلیو هنرمندانو فارسي استاد عیسی، ایتالوي جیرونیمو یرنیو (Geronimo Vereneo) او فرانسوي اوستین دوبرو په وسیله جوړه شوه.

ابومنریق (Abu Manrgue) هم د تاج محل طراح ایتالوي جیرونیموویرنیو ګڼي، خو د هند په تاریخ او د نامتو سیلانیانو تارونیه (Tavernier)، فرنیر (Fernier) او تیونو (Thvenot) په سفرنامو کې ددې تائید نه دی راغلی.

پوهاند میرحسن شاه، تاج محل د نړۍ له سترو عجایباتو څخه ګڼي او له طراحانو څخه یې یو هم د احمد هراتي یادونه کوي. د هغه په

قول احمد، چې د افغانستان د هرات د ولایت اوسېدونکی او د ډهلي قلعه د ماڼۍ جوړونکی هم دی، له لرګیو څخه د تاج محل طرح جوړه او شاه جهان ته یې وړاندې کړه. د شاه جهان دا طرح ډېره خوښه شوه او احمد ته یې د نقدي انعام سربېره د (نادرالعصر) لقب هم ورکړ.

ځینې کسان بیا د تاج محجل او د قسطنطنیې د آیاصوفیه (Hagia Sophia) د جومات ترمنځ، چې په ۱۴۵۳م کال کې جوړ شوی دی، د یو ډول تناسب په هکله غږېږي. آیاصوفیه په اصل کې یوه بیزانطیني کلیسا وه، چې د نامتو فاتح ژوستینین د واکدارۍ پر مهال جوړه شوې وه او وروسته د موزائیك او منارونو په زیاتولو سره ترکي مسلمانانو د هغه بهرنۍ څېره بدله کړه او په دې ترتیب تري د اهاصوفیې جومات جوړ کړ.

د Compton's دایره المعارف د تاج محل د طراح په صفت د استاد عیسی احتمال قوي ګڼي، خو عامه ذهنیت او د ماڼۍ ځینې ښکلاوې دا څرګندوي، چې د اسلامي معاشرې دغه ستره نښه د غربي نړۍ سره له وړاندې په تماس کې وه، خو د تارونیه، فرنیر او تیونو مشهورو سیلانیانو په آند تاج محل په پوره ډول د ختیځ په سبك جوړ شوی دی.

تاج محل یوه ستره اته مخیزه ماڼۍ ده، چې د ۸۰۰ فوټو په پراخوالي سره د یو بنسټ پرمخ قرار لري. ددې ماڼۍ په ساختماني موادو کې (جودهپوري) مرمر، چې ددې ډېرو یو خاص شکل دی، استعمال شوي دي. ماڼۍ د یوې لوړې چوترې دپاسه، چې اتلس فوټه لوړوالی او ۳۱۳ مربع فوټه مساحت لري، جوړه شوې ده. د ماڼۍ په کونجونو او څنډو کې ښایسته منارونه لري، چې د هر منار لوړوالی ۱۳۳ فوټو ته رسېږي. د منارونو په سرونو کې ښکلې قبې اینښودل شوي دي. تاج محل د ننوتو څلور لویې دروازې لري او د مصري ماڼیو په څېر یو لوی قبه لرونکی ګومبز لري، چې د څلورو کوچنیو قبه لرونکیو ګومبزو ترمنځ جوړ شوی دی او دغه اثر له کوچنیو ګومبزو څخه د قبه لرونکیو طاقونو او د هغه څخه اصلي ګومبزې ته لېږدول شوي دي. د چوترې په منځنۍ برخه کې اصل مزار د ۱۸۶ مربع فوټو په مساحت واقع دی. نوموړی جوړښت د چوترې له سطحې څخه ۹۲ فوټه او درې انچه لوړوالی لري. د هدیرې په منځ کې یوه لویه ګومبزه، چې قطر یې ۵۸ فوټو ته رسېږي، سمباله شوې ده.

د ساختمان هر لوری د محرابونو او لوړو رواقونو په واسطه احاطه شوې، چې پرمخ یې د کښېناستلو دوه پوړیزه ودانۍ جوړه شوې ده. د هر رواق په دریو بهرنیو اړخونو کې شپږ محراب لرونکي طاقونه د سرې پاملرنه ځانته جلبوي، چې په دوو منزلونو وېشل شوي دي او له جالي داره پنجرو څخه، چې په خاص طرزحکاکي او تراش شوي دي، د روزان په توګه ګټه اخیستل کېږي.

د لویې ګومبزې لاندې په منځنۍ برخه کې د ممتا محل مقبره او ترڅنګ یې د شاه جهان مقبره واقع شوې ده، چې مخونه یې په لیکنو او تاریخي یادښتونو ښکلي شوي دي. ددغو قبرونو لاندې د ممتاز محل او شاه جهان اصلي مرقدونه موقعیت لري، چې نقش او ښکلا یې نسبت پاسنۍ هدیرې ته لږه ده.

د پاسنیو قبرونو شاوخوا د سپینې مرمرې ډبرې په نازك پوښ ښکلې شوي دي، چې د ظریفو هنري فنونو شاهکاري څرګندوي. د رواقونو د اړخونو په مخونو کې عربي لیکونه حك شوي دي او د ودانۍ دننه ټولې خواوې په قیمتي ډبرو لکه مرجان، سلیماني عقیق،

مجرالدم او نورو سینګار شوي دي. له هديرې ځخه لیرې د چوترې ښي او کیڼې خوا ته دوه مستقلې ودانۍ جوړې شوي دي، چې یوه یې ښکلې جومات دی.

په مجموعي ډول دا ټوله ودانۍ د بڼ په شمول په یولوی انګړ کې واقع ده. د بڼ غولی ۱۸۸۰ مربع فوټه مساحت لري او له دې احاطې ځخه دباندې یوه حویلۍ واقع ده، چې اوږدوالی یې له نومورې غولي سره برابر دی، خو پلنوالی یې تقریباً د لومړنۍ حویلۍ نیمایي دی.

د ښکلایزو فنونو ځینو ماهرانو ددې امر په اثبات کې زیار ایستلی، چې د تاج محل په تاریخي ودانۍ کې د یوناني او قبطي معمارۍ له اصولو ځخه استفاده او اقتباس شوی، خو ښکاري چې دوی له حقیقت ځخه سترګې پټې کړي دي، ځکه چې صحیح اسنادو دغه قول دروغ ګڼلی.

جیمز فرګوسن (James Fergusson) پخپل اثر کې، چې د هندي او ختیزې معمارۍ د فنونو د تاریخ په نوم یادېږي، ددغې ودانۍ په هکله داسې لیکي: "ددې ټولو کاملو اسلوبونو او محاسنو په اجتماع کې یوه ښکلا د بلې ښکلا داسې تابع ګرځول شوې ده، چې ساری یې په نړۍ کې نه شي پیدا کېدلی".

د تاج محل جوړونکی شاه جهان، چې له هنر او ادبیاتو سره یې ډېره مینه لرله، د خپل ژوند په دوره کې له تاج محل ځخه د رسمي او شخصي استوګنځي په حیث ګټه اخیستله.

د تاج محل د ماڼۍ شاوخوا ښایسته ګلونه، ونې، د اوبو ډنډونه، ښایسته دروازې او لارې او ډېرې نورې ښکلاوې د نړۍ له ګوټ ګوټ ځخه په زرګونو سیلانیان، تاریخ پوهان، لرغون پېژندونکي، ښکلاخوښوونکي او د طبیعت نور مینه وال د کال دولس میاشتې ځانته راماتوي. د تاج محل په ماڼۍ کې هر سیلاني د خپلې خوښې هنر کولای شي ومومي او د هغه ننداره وکړي، خو هغه واقعیت، چې ټول سیلانیان یې د تاج محل په لیدو سره محسوسوي، هغه د یو نسل د فنکارۍ شهکار او د خپلې مینې یا د ژوند د ملګري په مقابل کې د یو امپراتور مینه او وفا ده. هوکې!

تاج محل که هرڅومره ظاهراً د ښکلو هنرونو تاج او د ټولو ښکلاو محل دی، خو په حقیقت کې د یو امپراتور د وفا تاج او د یو پاچا د مینې محل او بالاخره د یو انسان د مینې او محبت تل پاتې یادګار دی.

## مأخذ :

1_ Art and Civilization, Bernard. S .myers, Published by Paul Hamlyn, London, 1967 p 172

2_ Compton's Pictured Encyclopedia V-2 Published in William Benton Britanica. INC. 1968

۳_ اریانا دایره المعارف، د آریانا دایره المعارف انجمن، د کابل عمومي مطبعه، ۱۳۳۳، ۳۸۵۷-۸

۴_ د سباوون مجله، کال ۱۳۶۹، ګڼه ۳۴، ص۲۲

۵_ د سباوون مجله، کال ۱۳۶۹، ګڼه ۳۷، ص ۸۷.

۶_ د لیکوال شخصي یاددښتونه.

# ځوانان

درنو لوستونکیو!

دا ځل د ډالۍ استازي ښاغلي منیرالدین برهاني د ځوانانو د ټولنې د مالي مسؤول ښاغلي ډاکټر محمد خالد همت سره مرکه کړې، هیله ده، چې خوښه مو شي.

*پوښتنه: هیله ده، چې د خپلې ټولنې پر ځانګړتیاو رڼا واچوئ.*

ځواب: زموږ ټولنه، چې اوس د افغانستان د ځوانانو د مرکز په نوم نومول شوې، له څلورو کلونو څخه راپه دې خوا فعالیت کوي. د هېواد د ټولو بادرده او با احساسه ځوانانو

یې ګالې، غواړي د خپل هېواد د ترقۍ، سوکالۍ، ارامۍ او ابادۍ لپاره کوښښ وکړي او په دې لاره کې هر قسم مشکلات وزغمي.

پ: ستاسې په ټولنه کې سپین ږيري هم شته، که یوازې ځوانان پکې ګډون لري؟.

ځ: زموږ په ټولنه کې ځوانان وجود لري،



له ښي نه کیڼ لوري ته ښاغلی ډاکټر محمد خالد همت او د ډالۍ استازی برهاني د مرکې پر مهال

څخه جوړه شوې، زیاتې ستونزې او مشکلات

خکه چې زموږ د عضویت لپاره د عمر تاکل

[illegible]

[illegible]

کانفرانسونه، علمي او فرهنګي محفلونه، د هېوادوالو د اختلافاتو د ختمولو لپاره اجتماعي پروګرامونه، د ځوانانو د روزنې لپاره تربيوي او علمي کورسونه او داسې نورې چارې سرته رسولي. اميد لرو، چې په راتلونکې کې به ګرانو هېوادوالو ته عملاً داسې څه په تحفه کې ورکړو، چې په دې سياسي او فرهنګي فضا کې تراوسه پورې يو سازمان او ټولنې نه وي ورکړي. که لوی الله توان راکړ، موږ به د هېواد د اينچ اينچ خاورې او فرد فرد خدمت وکړو، چې دا زموږ لويه هيله او ارزو ده.

پ: د کومې اړتيا له مخې مو په فعاليت پيل وکړ؟

ځ: زموږ د فعاليت د پيل لوی لامل دا و، چې له يوه طرفه مو په هېواد سياسي سوداګر مشران ورځ په ورځ زياتېدل او له بل طرفه د هېواد ټولې شتمنۍ او ملي ارزښتونه په ډېره بې رحمانه توګه تالا او لوټ کېدل او بيا په ډېره بې دردۍ سره زموږ د دښمنانو لاسونو ته لوېدل او په همدې توګه زموږ کړېدلی، زورېدلی او مظلوم ولس په هر ګوټ او کنار کې بې عزته او بې ابرو کېده او همدارنګه زموږ هېواد زموږ په غړېدليو سترګو د نورو اجنبي کسانو له خوا اشغالېده او ورانېده. موږ د خپلو هېوادوالو او ګران هېواد لپاره هېڅ خواخوږی مشر او سازمان پيدا نه کړ، نو ځکه مو په خپله مبارزه پيل وکړ، چې د ګاونډيو هېوادونو او د هېواد په داخل کې د طالب رژيم له خوا سخت تهديد او شکنجه شو، الحمدالله اوس زموږ د تهديد او شکنجي ستونزې راکمې شوې.

پ: تاسې سره په دې هکله څوک مرسته کوي؟

ځ: موږ سره فرهنګي او سياسي چارو کې په هېواد او وطن مينو زياتو مشرانو، ځوانانو او پوهانو مرستې کړې، خو مالي مشکلات مو تراوسه پورې زيات دي، ځکه چې زموږ ځوانان حق العضويت، صدقات، زکاتونه او نور کومکونه کوي،صرف او صرف د خپل جب په روپيو چلېږو او له هېچا څخه د قيد او شرط لاندې مرسته نه اخلو. که څوک في سبيل الله بې قيد او شرطه مرسته موږ سره کوي، ورڅخه مننه کوو.

پ: ستاسې په اند د هېواد د نېکمرغۍ لپاره بايد څه ترسره شي.؟

ځ: زموږ په اند، د هېواد د نېکمرغۍ لپاره به ښه لار دا وي، چې ټول خواره واره افغانان راټول شي، يو بل ته لاسونه ورکړي، يو د بل ورونه او ملګري شي، په پوره اخلاص او صداقت سره خپل کارونه او د هېواد ابادي پيل کړي، تعصبات او اختلاف شاته وغورځوي او دا روحيه ځان کې پيدا کړي، چې مخلص خلك اخلاص ته پرېږدي او مبتکر خلك ابتکار ته پرېږدي، نو بيا به مو هېوادوال او له نړۍ سره به سيالۍ کې برابر شي. د هېواد حيثيت به په ځای او د لاسه تللی برم به مو يو ځل بيا د نړۍ په کره کې وځلېږي.

پ: آيا پخپلو چارو کې کومې ستونزې لرئ؟.

ځ: هو! موږ په خپلو چارو کې يو شمېر ستونزې لرو، چې لويې ستونزې اقتصادي ستونزې او مشکلات دي، چې زموږ د کار ډېر

ممانعت کوي او همدارنګه د اقتصادي ستونزو په اساس زموږ علمي او فرهنګي چارې زیات وخت مختل کېږي او کله کله د هېواد د دښمنو حلقو له خوا له سیاسي فشار او مشکلاتو سره هم مخ کېږو او همدارنګه مطبوعاتي او رسنۍ اداري په دې خاطر موږ نه فاصله لري، چې یا خو موږ غریب یو او یا زموږ د سیاسي، فرهنګي او علمي حریفانو د مداخلې نتیجه ده.

پ: د هېواد ځوانانو ته کوم پیغام لرئ، خوښ به شو.

خ: د هېواد ځوانانو ته دا پیغام لرو، چې باید ټول ځوانان له خپل وخت څخه ګټه واخلي، په پوره متانت او زړورتیا سره د علم په لټه کې شي، ځان کې ښه پوهه او استعداد پیدا کړي، ځکه چې د ښه علم او پوهې په رڼا دوست او دښمن ښه پېژندل کېږي او هم په ښه تدبیر سره دښمنانو ته ماتې ورکړي، نو له ټولو ځوانانو څخه هیله کوو، چې زیات کوښښ وکړي، ترڅو د راتلونکي وخت ښه عالمان شي او هم له ځوانانو څخه هیله لرو، چې ټول اختلافات او تعصبات، چې له مشرانو څخه په میراث کې پاتې دي، تر لایتناهي پورې شاته کړي، د خپل بدن، وخت او ځوانۍ څخه وران هېواد ته څه صدقه ورکړي، ترڅو دوی په غړېدلیو سترګو ودان، خوشاله او سرلوړی افغانستان وویني.

- له تاسې نه ډېره مننه، چې له "ډالی" سره مو مرکه وکړه.

- ستاسې دې هم کور ودان وي، چې زموږ پوښتنــــــــه مـــــــو وکـــــــړه

## لوی خلک

لوی خلک لکه سیندونه خپل هدف ته بې لارې درومي او د دوی شهامت همدغه دی، چې له ګړانو او پر پېچه لارو څخه نه ډاریږي.

"تېچي"

# د اختر جامي

خومره چې به اختر رانږدې کېده، نو ورسره به يې په زړه غم منګولې خښولې. هغه حېرانه وه، چې ستورې ته څه ووايي؟ د پېنځلسو ورځو پورې يې په هغه دغه وغولاوه، خو نوره يې ورته هېڅ بانه، نه شوه جوړولای. د شپې چې به يې زوی ويده شو، نو تر ډېره به يې ورته د حسرت په سترګو کتل. پر خپلې بېوسۍ او دستوري په وړه غوښتنه به يې سترګې ډکې ډکې شوې، له دې سره به پاڅېده او هغه به يې په وېدو څو ځله ښکل کړ. هغې به د شپې تر ډېره د اسمان ستورو ته کتل او بيا به يې د دعا لپه د هسک پر لور ونيوه او له ځانه سره به يې په سوي توګه وويل:"خدايه! زما سختو ته وګوره! له تا پرته هېڅوك نه لرم، لويه خدايه! نور درنه هېڅ نه غوارم، که د ستوري د اختر جامې، مې وشوې، نو هر وخت به درته نفل کوم. تر زاريو وروسته به يې د کور لوښو او نورو شيانو ته وکتل، خو په ټول کور کې داسې څه نه وو، چې څه ترې جوړ شوي وای. تر دې وروسته به په نهيلي زړه پرېوته او ورسره به خيالونو په مخه کړه. لږه شېبه کې به يې د تېرو کلونو حالات سترګو ته ودرېدل، هغه وختونه چې هره شېبه يې هغې ته د جنت له خوږو کمه نه وه، د هغې ستوری په هغه وخت کې د کور و کلي تر ټولو ماشومانو په جامو ښکلی او نازولی و، د هغوی کره به جوپې جوپې خپلوان راتلل، خو چې څښتن يې په ماين مړ شو او د ستوري ښي لاس هم ورسره والوت، نو ډېره موده لاته وه تېره شوې، چې له چرګی يې ټولو خوښيو کډه وکړه او هماغه ستوری، چې مخکې به د سبا د سترګې غوندې ځلېده، بيا له يوه ملنګه کم نه ښکاره کېده. هغوی بې له خدايه بل د سر سيوری نه

په لیدلو یې د مور سترګې سرې سرې شوې، هغې د واره روپۍ د هغه په لاس کې ښکل کړې او بیا یې چې ځنګه وروکتل، نو په اننګو یې اوښکو لارې جوړې کړې. مازیګر ناوخته و، چې ستورې ته یې توتوه واخیستله. هغه په یوه منډه د کلي ګنډونکي ته یووړه، خو ګنډونکیو سره د اختر په ورځو کې خبرې چېرته کېږي؟! تر ډېرو منتونو او زاریو وروسته یې ترې توته واخیسته. اختر ته یوه ورځ پاتې وه. د هغې ارمان پوره کېدنکی و، یوازې د جامو د ګنډلو روپۍ یې باید ورکړې

وای. د شپې له ډېرې خوښۍ کټ ځای نه ورکاوه. اختر ته پاتې یوه ورځ ورته د کال غونډې ښکاره کېدله، په هغه سهار د کار ځای ته تر ټولو مخکې ورسېد. د هغې ورځې هره شېبه پرې ډېره اوږده تېرېده. نن د هغه د کار اخرنۍ ورځ وه، نننۍ روپۍ یې د جامو د اجورې روپۍ وې. د هغه زړه و، چې نن ګنډونکي ته د روپو د ورکولو په بانه خپلې جامې هم ووینې. په همدغه فکرونو کې مازیګر و، خو د مزدورۍ پای ته به یې نیم ساعت پاتې و، چې د اختر د جامو ژورو خیالونو په مخه کړ. د هغه

ماشوم ذهن د اختر په خوشالو کې ګرځېده، هغه نور خپل ځان په نویو جامو کې د همزولو په منځ کې لیده، چې دیګې ترې استاذ په لوړ او جدي غږ خښتې وغوښتې. د غږ په اورېدو هغه لکه د عصبي خوبولي ناروغ د شالورې ته توپ کړ، د توپ سره یې پښه په یوه هوا ګیر شول (تخته) برابره شوه او چې ترڅو یې لاس پاسني لرګي ته رسېده، نو د څلورم پوړ له سره بیا ځمکې ته رسېدلی و او ماشوم روح یې د جامو په ارمان خدای ته په سلګو و!!.

# دوه خبرې

ژباړه: فیضان الله

یوه اوزګار ته یې دوست وویل:
- پوځ ته ولې نه ځې. نوي خلك ورته نیسي!
اوزګار ملګري یې ورته وویل:
- زه شرمېږم.
- ولې شرمېږې؟
- خکه شرمېږم، که پوځ ته لاړ شم، نو دوه خبرې دي، یا به مې تش راولېږي، یا به مې پکې داخل کړي. که یې ونه نیولم، خیر دی، خو که داخل مې کړي، نو دوه خبرې دي، یا به مې هېواد کې دننه پرېږدي، یا به مې سرحدي پولې ته ولېږي. که دلته یې پرېښودم، خیر دی، خو که سرحد ته یې ولېږلم، نو دوه خبرې دي، یا به جنګ وي، یا به امن.
که امن وي، نو خیر دی او که جنګ وي، نو بیا دوه خبرې دي، یا به مړ شم، یا به مې دښمنان ونیسي.
که مړ شوم، نو خیر دی، که ژوندی یې ونیولم، نو بیا دوه خبرې دي، یا به مې وچ کړي، یا به راځخه صابون جوړ کړي. که وچ یې کړم، نو خیر دی، که صابون یې رانه جوړ کړ، نو بیا دوه خبرې دي، یا به د جامو صابون یم، یا خو، خوشبوی.
که د جامو یې رانه جوړ کړ، خیر دی، که خوشبوی صابون شم، نو بیا دوه خبرې دي، یا به راباندې سړي لامبي یا ښځې. که سړي راباندې لامبي نو خیر، دی خو که ښځې راباندې لامبي، نو زه شرمېږم!

# له ناګار صیب سره د زړه خواله

له ښي نه کیڼ ته ښاغلی ناګار صیب د عبدالناصر بریالي پوښتنو ته ځواب وايي.

پ: تر هرڅه دمخه که د مجلې لوستونکیو ته په بشپړه توګه ځان وروپېژنې، خوښ به شو

ځ: ناګار، د ننګرهار د ښې کوټ ولسوالۍ اړوند د چاردهي اوسېدونکی یم.

پ: له کوم وخت راهیسې مو شاعري پیل کړې؟ آیا خپل لومړنی شعر مو په یاد دی؟

ځ: په شاعرۍ کې راته د چاپېریال اغېزه ډېره برېښي، زمونږ د کلي په دارلحفاظ کې د حافظانو له خوا د استاذ عبدالله او مشهور مجاهد حاجي محمد امین داوچتې شاعرۍ، ترنم او همدغې زمونږ په کورنۍ کې ديني علماء او نور شاعران هم وو.

پ: لکه چې وینو، ستاسې ډېره شاعري غزلیزه ده، څنګه مو دا صنف خوښ کړ؟

ځ: نه پوهېږم. غزل مې څنګه خوښ شو. چې دا به د غزل د پېړۍ د نوښتګر لارښود حمزه بابا اغېز وي او که د بهرني ښکېلاك پر ضد به د يوې اړتيا په توګه د غزل بوده او تنسته داسې وه. چې حماسيه يې د نظم په توپير له کومې فاصلې او يا مقدمې پرته ادا کولی شوه؟

پ: ستاسې په ډېرو شعرونو کې تلميح او هغه هم پخوانو اسلامي اتلانو او يا کارنامو ته نغوته شوې. آيا ستاسې په اند دا به لوستونکيو ته ستونزې نه پېښوي؟

ځ: رښتيا هم چې مې په شعرونو کې تلميحات وو. خو دا د وخت غوښتنه وه. د روسانو د يرغل پر وخت دا اړتيا خامخا محسوسېدله. ولې شاعر هم د ټولنې د يوه حساس مسؤل په توګه مجبور دی. چې که څه هم ايما. اشاره او کنايه وي. بايد خپل ولس ويښ وساتي او پردې ټولو سربېره درنه ځان داسې ژغورم. چې:

د شيدا طور يو څه مشکل پسند دی

پ: کومې انګېرنې شاعرۍ ته وهڅولی؟

ځ: که څه هم دا غبرګون په دويمه پوښتنه کې شته. خو لکه څنګه چې لومړی نيم ژوند په اميد تېرېږي او دويمه برخه يې د تېر په اندېښنو. ماته په لومړيو کې شاعرۍ بېخي يوه خارق العاده پېښه او په ليکلو به يې دومره بسيا شوم، لکه چې کوم لوی ساينسي کشف مې کړی وي. خو اوس پوه شوم، چې د اتش يو

خيال و. شاعري خو سړی له دنيا بېخي ګوښه کوي. چې له تارك الدنيا صوفي سره يې هېڅ توپير نه وي. بوبه. که خيال. غيب او همدغسې ګروهه يې خدای ته ورلنډ کړي

پ: ډېر خلك په دې ګروهمن دي. چې د شاعرۍ په پاڼدو کې مينه ډېر رول لري. څنګه له تاسې سره هم همداسې شوي؟

ځ: په شاعرۍ کې خو مينه بېخي ردېدلی نه شي. خوم په دومره توپير. چې لومړی عشق مجازي او بيا د حقيقت پر پولو وراوړي. که د رحمن بابا او حمزه بابا غونډې د سترو بزرګوارانو شاعري له مينې ډکه وي. نو زموږ په وخت کې خو حسن ډېر بربنډ شوی. د شاعر به کار څه وي. چې تري بې عمه شي. خو زه به د خپل نجات دعا کوم.

پ: په کلاسيکو او راوروسته شاعرانو کې مو د چا شاعري خوښه ده؟

ځ: په کلاسيکو شاعرانو کې رحمن بابا. خوشال بابا. حميد بابا او کاظم خان شيدا او نور د پولو پښتنو د خوښې شاعران او ډېر حقدار دي. همدغسې په وروسته شاعرانو کې خو ډېرې سترې هستۍ شته او که تر دې وروسته مو مطلب وي. نو حمزه بابا او الفت صاحب خو د هر افغان د پګړۍ ګل دی.

پ: ستاسې په نظر شعر څه ته وايي؟

خ: شعر په ادبي ژبه، د خيال او فکر عناطفي تړون، خو شعر هغه ملکوتي انګازې دي، چې شاعر يې په الهامي ډول له غيب نه اخلي او خپل ولس ته يې نذرانه کوي. زما په فکر که څه هم د تلفيق اديان په برخه کې به د صوفيانو ونډه ډېره وي، خو دا چيغه تر ټولو لومړی شاعر پورته کوي او د تاريخ له مخه زياتره صوفيان هم له آره ښه شاعران وو. نو ځکه بايد انسان په شعر کې ولتهول شي او دا شاعر دی، چې د خدای ټول مخلوق ورته بې توپيره ښکاري.

پ: د پښتو د اوسني شعر بهير څنګه ارزوئ؟.

ځ: روان شعري بهير ډېر پياوړی دی، خو ښه به دا وه، چې د ځوانو شاعرانو شعري ټولګې تر چاپ مخکې کومې ادبي ټولنې ارزولی، لکه په پېښور کې افغان ادبي بهير. چې اوس يې مشر تکړه قلموال او برلاسی نقاد استاد صميم دی او همدغسې نور...

پ: د پښتو په ځوانو شاعرانو کې مو د چا شاعري خوښه ده؟.

ځ: د پښتو په ځوانو شاعرانو کې ډېرې د قدر وړ هستۍ شته، خو پروين ملال، اکبر. کاروان او د صميم شعري نثر ته ډېر هوسېږم.

پ: ادب د ادب لپاره غوره ګڼئ او که ژوند لپاره؟

ځ: ادب د ادب لپاره او که د ژوند لپ اره بې بنسته بريښي. اديب د ټولنې د يوه غړي په توګه خامخا له خپل چاپېرياله اغېزمن دی او دغه انعکاس به پکې د اړتيا تر حده وي. د روسانو پر ضد چې اړتيا وه، زموږ شاعرانو خپل قلمونه ټوپکونه کړل. د غزل، نظم، شاعر او همدغسې ولسي او صوفي شاعر ټول پر يوه لاره روان وو، نو ځکه ويلی شو، چې ادب د ادب لپاره هم دی او د ژوند لپاره هم او دا دواړه اصله پرې په يوه وخت کې عملي کېدی شي.

پ: زموږ په ټولنه کې شاعري او ليکوالي ولې غوره رول نه لري؟.

ځ: د شاعرۍ او ليکوالۍ د ناغوراوي لوی لامل زموږ د ټولنې علمي نيمګړتيا ده. حمزه بابا يو وخت يوه بخاري عالم موسی جارالله ته څه ښه ويلي وو، چې زموږ قام غېرتی دې، خو نه پوهېږي.

پ: په نثر کې له کوم ژانر سره مينه لرئ او پخپله مو په دې برخه کې څومره کار کړی او د کومو ليکوالو ليکنې مو خوښېږي؟.

ځ: په نثر کې ډېر وخت په سرمقالو او سياسي تبصرو مصروف پاتې شوی يم، اوس په پوهنځي کې د تحقيق پر لور ګامونه اخلم، ليکوالي خو ټول ډېر ښه ليکي، خو زما د صميم نثري ليکنې ځکه خوښې دي، چې له يوه شعر نه هم پرې ډېره خواري شوې وي.

پ: ستاسې په اند پښتو ادب د پرمختيا لپاره څه بايد وشي؟.

ځ: پښتو ادب د پرمختيا پر لور ځي، خو انتقامي احساس بايد له ادب نه ليرې شي، په دې مانا چې يو وخت جهاد او زموږ د ټولنې ويارمن پاخون په ادب کې منعکس شو، خو دا بايد څوك د خپلې شخصي ايډيالوژۍ ضد ونه ګڼي، دا يوه ملي اړتيا وه. همدغسې زموږ د ملت ګټات دې د يوې حماسې په ډول په ادب کې خوندي پاتې شي، بايد بې توپيره ورته کار وشي، ځکه د ملت په ميراث کې ټول شاعران او ليکوال شريك دي.

پ: ځوانو شاعرانو ته کوم پيغام لرئ. مهرباني وکړئ.

ځ: زموږ پيا وړي زلمي شاعران بايد خپل ادبي يون کې د اسلافو د هڅو مشالونه روښانه او خپل مستقبل دې د ويارمنې ماضي په ليکو د زمانې د ترقۍ، پرمختيا او نوښتونو پر بهير ورګډ کړي.

ـ ناګار صاحب! له تاسې ډېره مننه، چې ډالۍ مو پخپلې مرکې ښکلې کړه.

ـ تاسې نه هم مننه.

## سندريز حشر

په مړوند باندې تر عمره وړۍ خواب وی
لکه بوی څوړند په ښاخ کې د ګلاب وی
زما سوې سينه ستا د خولو پرخه
څڅېدلې دا شراب په دې کباب وی
تلوسو هسې په تمه کې نغښتلی
لکه ژوند مخ په فنا پښه په رکاب وی
پړکېدل د لپونو سندريز حشر
د صراط په ځای کې زلفې خور تناب وی
چې ميوند خيبر خوار نه شمه ليدلی
د هينداري انځورونه د شباب وی
د عشق تنده په فرات کله ماتېږي
کربلا ستاله کوڅو تللی بې اب وی
تعلق مې تملق غوندې مردود کړی
کاشکې زه "تاګار" هغه خانه خراب وی.

لنډه کیسه

# تور مار

عارف الله فرید

زه او زرین نور دومره ستړي شوي وو، چې له هرو لسو قدمونو وروسته به مو دمه کوله. په همدې ډول د غره سرته وختو او هلته بنه په آرام سره کېناستو.

زرین زما د جهاد ملګری و او په ښوونځي کې زما ټولګیوال و. د هغوی پلرنی ځای ننګرهار و. خو په کابل کې اوسېدلی و ډېر نرم ژبی او مؤدب و. په ښوونځي کې یې هم پرته له کوم علمي بحث څخه نور هېڅ سره هېڅ ډول خبرې نه کولې. که کله به ملګرو ټوکې کولې، نو زرین به ایله موسکی شانته شو. په کرس سره یې هېڅکله نه خندل.

موږ چې دلته کېناستو زرین راته حېران غوندې ښکارېده. مخ یې راواړاوه او راته یې وویل: اشنا د طبیعت ښکلا ډېره ښه وي ته دا دنګ دنګ غرونه وګوره او بیا په دې کې دا ښکلي ښکلي نښترونه، وښتي او دا نورې رنګ رنګ ونې او غرني ګلان او دا ښکلي او مستوونکي بویونه. دغو درو او غرونو ته خدای څومره ښکلا ورکړې؟ ته دغې ونې ته وګوره، چې څومره ښکلې ده. د تنې په هر متر کې یې پېنځه او شپږ څانګې دي. چې د چتر غوندې ښکاري او بیا دلاندې څخه پورته خواته هره ټولګه څانګې یې یو په بل پسې لنډې دي، څومره ښکلا ورته خدای ورکړې. زرین شروع کړې وه او ما ورته کرار غوږ نیولی و. د ښکلا او ښایست خبرې یې ډېرې وکړې، خو زه دغه یو ټکي ته متوجه وم او دا سوال راته پیدا شوی و، چې زرین د پخوا په خلاف نن ولې ډېرې خبرې کوي او بیا د طبیعت په ښکلا ډېر ګړېږي. زه نور د ډېرې یخنی له لاسه راټول شوی وم، ځکه چې زموږ شاوخوا ته سپیني واورې پرتې وې او داسې باد پرې رالوتی و، چې رسا یې د سړي ځیګر سوری کاوه، خو ځان مې ټینګ کړی و. ده ته مې څه نه ویلي، ځکه دا لومړی ځل و، چې د زرین په ژوند کې مې داسې بدلون لیده. بیا یې راته مخ راواړاوه او ویې ویل: آشنا دا د ناو په منځ کې دې د سپینو وربخو غونډۍ ته خیال دی، داسې برېښي لکه د لومړۍ شپې ناوې. څومره ښکلې ښکاري او دا له وریځې پورته ونې داسې برېښي لکه شین شال یې، چې په سر ورته اچولی وي. له دې خبرې سره لږ شانته غلی شو، خو چې زما ورته خیال شو، سر یې په زنګانه ایښی و. په سلګو سلګو یې ژړل، زه راپاڅېدم په سر مې ورته لاس کېښود ورته مې وویل: زرینه ولې؟

څه دي په زړه کې راغلل او دا ژاړې ولې؟ خو د زرين سلګۍ نورې هم ګړندۍ شوې، غېږ مې ترې چاپېره کړه، په ما هم د خپګان څپه راغله او ويښتان مې ځېږه شانته شول. لاسونه مې ورڅخه راتاو کړل. لږ شېبه وروسته مې بيا ورڅخه پوښتنه وکړه: دا څه خبره ده، چې ماته يې نه وايې.

زرين، چې سر راپورته کړ، ټول مخ يې په اوښکو لوند و، د څادر په پيڅکه يې اوښکې پاکې کړې او ويې ويل: ماته دلته هسې زما د ژوند يوه تېره شوې صحنه راياده شوه، هغې پېښې زه ډېر دردولې وم، چې کله راته راياده شي، بيا نو پرته له دې چې ښه مې وژړوي، نه مې پرېږدي. زه نه غواړم، چې دا خبره هر چاته ووايم، خو تاته يې ځکه وايم، چې د زړه شك دې وځي. اوس ورته غوږ شه!

ما ورته وويل، چې حرکت به وکړو ناوخته کېږي. کيسه راته په لار کې کوه. روان شو او ده راته داسې پيل وکړ: ارزو له لومړي ټولګي څخه ما سره يوځای وه، زما او د

هغې ډېره مينه وه، زه به چې غرمه کور ته راتلم، نو د سهار غم به راسره و. هر سهار به چې ارزو ښوونځي ته راتله، نو د خوراك او د لوبو شيان به يې زما لپاره هم راوړل، ترڅو چې په مور يې لاږمه کړې وه، چې د زرين برخه به هم ورکوي او دبازار څخه به يې چې څه راغوښتل، زما لپاره به يې هم راغوښتل. ما به هم په هرڅه کې د ارزو برخه کوله.

له اتم ټولګي وروسته زه او هغه سره جلا شو. د ارزو پلار په اريانا هوايي شرکت کې کار کاوه او زما پلار تجارت کاوه. هغوی دواړه په اريانا هوايي شرکت کې سره بلد شوي وو، خو زما او د ارزو ملګرتوب نور هم سره خواږه کړي وو. د ارزو پلار له ما څخه ډېره ښه خاطره درلوده، ځکه چې په اته کلونو کې زما او د ارزو ترمنځ د ذرې هومره خپګان هم نه وو راغلی. د هغه له ما سره ډېره مينه وه، زه به ارزو سره ډېر د هغوی کور ته تلم.

کله چې زه د استقلال او ارزو د حبيبيې په ليسو کې شامل شو، زموږ مينه نوره هم زياته شوه. دغه مهال زه نوی زلمکی وم او ارزو هم پېغله وه.

يوه ورځ مې پلار راته وويل: بچيه زه غواړم، چې کور دې ودان کړم، ما ورته وويل چې زه خو سبق وايم، په دې زما فکر مه خرابوه. هغه راته وويل: زه هم ستا د فکر سره سم کار کوم. ما ورته وويل: زه پوه نه شوم؟! هغه راته وويل: ما او مور دې ستا لپاره ارزو خوښه کړې! زه ټکنی غونډې شوم، ځکه چې له ارزو سره زما مينه د ماشومتوب مينه وه. زموږ په مينه کې ځوانی او زلميتوب هېڅ اغېزه نه وه کړې، ما په زړه کې د هغې په باره کې هېڅ داسې تصور نه و کړی.

زه همداسې غلی په فکر کې ناست وم، ښکته مې کتل، چې پلار مې مور ته غږ وکړ، چې چېرته ځې. زه په همدې سوچونو کې ډوب په کوټه کې پروت وم. نږدې غرمه وه، چې زموږ په غولي کې د تمانچې ډزې وشوې. زه ژر راپاڅېدم. له کړکۍ څخه مې پلار او مور وليدل، چې دواړو خندل او په غبرګو اوازونو يې راته وويل. بچيه مبارك دې شه. د ارزو د سمال مو درته راووړ. زه دې ته خوشال وم، چې زما د سمال يې راوړی و، خو خپه دې ته وم، چې زه به له ارزو او د هغې له مور او پلار سره څنګه مخامخ کېږم، ځکه چې زه د هغوی په وړاندې لکه د هغوی زوی لوی شوی وم.

په هر صورت ارزو زما کوروداني هم شوه، خو له همدې ورځې زما او د هغې ليدل ختم شو. يوه ورځ، چې زه ښوونځي ته لاړم، د

دوستانو بدرګه کړ. ډېر دوستان راجمع شوي وو، زه هم د شپې تر ناوخته پورې ورسره ناست وم. ډېر ښه ټېنګ ټکور و. ماته مې ملګرو وویل: تاته اجازه ده، ځه لاړ شه. زه هم پاځېدم، خپلې کوټې ته لاړم. ارزو لا زما په انتظار ناسته وه. په سر یې ښین شال پروت و. د هغې سپین واورین مخ د تورو زلفو په منځ کې داسې برېښېده، لکه سپوږمۍ نه چې وریځې راتاوې شوي وي. ستړې مشي مې ورکړه. هاغې راته د سر په خوځولو د ستړي مشي ځواب راکړ. هغه ډېره زړه وره وه. خو تن ډېره شرمېده. ماته یې نه کتل

ما ورسره ټوکې کولې. خو هغې به مخ په دسمال پټاوه. تر یو ساعت خبرو وروسته مې ورته وویل: که ستا اجازه وي او خوب نه درځي، زه به یو ځل بیا ملګرو ته ورشم. خپه نه شې. هغې راته په ټیټ اواز وویل، چې ستا خوښه. خو زه پوه شوم، چې زړه یې نه و، چې زه ورځخه لاړ شم. خو زه ورځخه روان شوم. ورته ومې ویل: زه بېرته ژر راځم، د دوستانو مجلس ډېر ګرم او خوږ و. زه هلته ډېر ایسار شوم. بیا هم راته ملګرو وویل، هلکه ته موږ سره څه کوې. ورځه خپل کار دې کوه. وېده شه. زه هم همدې خبرې ته ناست وم، ژر پاځېدم، خپلې کوټې ته لاړم، خو ارزو ویده وه، یوه شېبه ورته په کټ کېناستم. ټوخي مې وکړ راوېښه نه شوه بیا مې لږ صبر وکړ، دروازه مې خلاصه کړه بیا مې پورې کړه ددې لپاره که راویښه شي، خو ارزو ډېره پخه ویده وه، لکه دوه درې شپې یې چې ویښې تېرې کړې وي. صبر مې ونشو، مخ مې پرې لوڅ کړ، پر سپین مخ مې ورته ډېر په کراره لاس کېښود. بیا هم راویښه نه شوه، په اوږه مې ورته لاس کېښود، لږ شانته مې وښوروله. بیا مې ښه وښوروله. خو چې ښه ورته ځیر شوم، ساه یې نه اخیسته. ډېر وارخطا شوم، لږه مې رابنکله، چې په توشکه یې واچوم. ځکه چې هغه لا زما لپاره ناسته وه ما چې رابنکله د شال څخه یې یو تور مار راووت او د وره په طرف یې منډه کړه. ما هم پرې ورټوپ کړ، مار مې وواهه او مړ مې کړ، خو ظالم زما ارزو له خانه ورانه دې مړه کړې وه!!

---

**مینه تر واده خوږه ده. لکه رومان چې تر تاریخ خوږ دی.**

"ولټر"

# خنداوې او پندونه



## د سر درد

یوه ادبي نقاد د فرانسې مشهور لیکوال الکساندر دوما ته وویل: ستاسې په وروستني اثر کې مې یو نوی تعبیر تر سترګو شو او هغه دا چې تاسې لیکلي وو:"یوه دردونکې خلاء ایجاد شوه"، یو خالي شی څرنګه دردونکی کېدای شي؟

الکساندر دوما ځواب ورکړ: آیا تراوسه پورې دې کله سر درد نه دی کړی؟

## د چرچیل وینا

د انګلستان صدراعظم چرچیل د خپلې وینا د خپرولو لپاره د لندن د راډیو پر لور روان و، چې په لاره کې یې موټر خراب شو. ددې لپاره، چې ناوخته نه شي، نو د ټکسي په واسطه یې ځان د ستوديو مخې ته ورساوه او له ټکسي چلوونکي څخه یې وغوښتل، که نیم ساعت تم کېدای شي، نو بیا راځم.

چلوونکي ورته وویل: ډېره بخښنه غواړم، څرنګه چې پنځلس دقیقې وروسته چرچیل وینا کوي، غواړم خپل کور ته لاړ شم، چې د تلویزیون په وړاندې د چرچیل وینا واورم.

چرچیل ډېر خوشاله شو، چې عام وګړو ته دده وینا تر کومې ارزښتمنه او په زړه پورې ده او ددې لپاره، چې د خپلې وینا د ارزښت او اهمیت په اړه نور هم پوه شي، نو چلوونکي ته یې وویل که د توقف په مقابل کې یو څه روپۍ درکړم، نو بیا څنګه؟

ټکسي چلوونکي وویل: چې داسې ده، نو په چرچیل پسې او دده په وینا پسې دې تورة بلا شي، درته به ایسار شم.

## مولانا سعدالدین ملتاني

یوه سړي، چې هېڅکله یې مولانا سعدالدین ملتاني نه ولیدلی، چې یوه ورځ ناببره په لاره کې ورسره مخامخ شو او ورته یې وویل: السلام علیکم مولانا سعدالدینه!

مولانا ورته وویل: له څه وپوهېدلې، چې زه سعدالدین یم؟

سړي ورته وویل: آیا تاسې نه دي لوستي چې :"یعرف المجرمون بسیما هم".

## د انسان غوښتنه

یوه باندیني پوځي افسر ناپلیون بناپارت ته وویل: موږ د خپل عزت او شرف لپاره جګړه کوو، خو فرانسه یې د مادیاتو او پیسو لپاره کوي.

ناپلیون ورته وویل: سمه ده! هر انسان د هغه څه غوښتونکی وي، چې نه یې لري.

## نیاو لرونکی پاچا

د انګلیس پاچا اوم ادوارد د یوه مسافرت په لړ کې کله، چې له یوه کلي څخه تېرېده د هغې سیمې ښوونځي ته ننووت. وروسته له هغې، چې د ښوونځي له چارواکو څخه یې د حالاتو پوښتنه وکړه، له ځینو زده کوونکیو څخه یې هم پوښتنې وکړې. په دې لړ کې یې له یوه زده کوونکي څخه وپوښتل: زویه د انګلستان د څو پاچاهانو نومونه واخله؟.

زده کوونکي ځواب ورکړ: الفرد او ملکه ویکتوریا.

ښوونکي د غوره مالۍ په نیت ځان زده کوونکي ته نږدې کړ، چې د ادوارد نوم هم واخله. زده کوونکي هم پرته له ځنډ څخه وویل: اوم ادوارد.

پاچا وموسېده او پوښتنه یې وکړه: ډېر ښه! نو ووایه، چې اوم ادوارد کومې سترې چارې سرته رسولي دي؟.

زده کوونکي سر ټیټ واچاوه او وې ویل: صاحبه نه پوهېږم.

اوم ادوارد ور وړاندې شو او د زده کوونکي پر سر یې لاس تېر کړ او ورته یې وویل: زویه! مه خواشینی کېږه، ځکه زه په خپله هم نه پوهېږم.

## د هېرېدنې څواک

وایي، چې د فرانسوي فزیک پوه آمپر د هېرېدنې قوه ډېره څواکمنه وه. یوه ورځ، چې په کور کې یې ځوک نه و او دی له کوره دباندې واته، نو پر یوه کوچني کاغذ یې ولیکل: "په کور کې ځوک نشته" او پر دروازه یې وځړاوه.

د بېرته راستنېدو پر مهال یې سترګې پر خپل لیکل شوي کاغذ ولګېدې او وې ویل: عجبه ده! لکه چې په کور کې ځوک نشته. خیر! هېڅ پروا نه کوي اوس به لاړ شم او یو ساعت وروسته به بیا راشم، کېدای شي، ځوک به پیدا شوی وي.

## ګناه او اطاعت

د عباسي خلیفه مامون د ښوونکي د خولې وینا ده، چې وایي: یوه ورځ مې د ناروغۍ له کبله په ناسته لمونځ ادا کاوه، چې ناڅاپه مې د مامون یوه تېروتنه ولیده، نو له خپله ځایه پاڅېدلم، چې جزاء ورکړم.

مامون راته وویل: استاذه! یوه کوچنې زده کوونکي ته د جزاء ورکولو لپاره ودرېدی شې، خو د خدای عبادت او اطاعت په ناستې سره ادا کوې.

## هټلر او پیانو غږول

یوه ورځ هیټلر د پیانو غږولو په خیال کې د هوایي ځواکونو له قوماندان مارشال کورینګ څخه پوښتنه وکړه: زما پیانو غږول څه ډول دي.؟

ګورینګ په داسې حال کې، چې تیارسی ولاړ او پوځي سلام یې ادا کاوه وویل: مشره! په نړۍ کې درې ډلې خلك ژوند کوي:

لومړی: هغوی، چې بیخي یې پیانو غږول زده نه وي.

دویم: هغه دي، چې په خراب او نا مناسب ډول پیانو غږوي.

دریم: هغوی، چې په پیانو غږولو ډېر ښه پوهېږي او ځانګړې ځیرکتیا لري. څرنګه چې تاسې زموږ د ستر مشر په توګه په هرڅه او هر ځای کې په لومړۍ ډله کې راځئ، نو ځکه د خوشالۍ ځای دی، چې دلته هم په لومړۍ ډله کې راغلي یاست.

# د انګلستان د باندینیو چارو وزیر او بیسمارك

د انګلستان د باندینیو چارو وزیر آلمان ته تللی و، یوه ورځ د آلمان لومړي ویزر بیسمارك هغه خپل کور ته وباله، په مېلمستیا کې له هرې خوا راز راز خبرې وشوې. د خبرو په لړ کې د انګستان د باندینیو چارو وزیر له بیسمارك څخه پوښتنه وکړه: تاسې له مزاحمو وګړو سره، چې ستاسې وخت په خوشې خبرو ضایع کوي څه کوئ؟

بیسمارك وویل: په دې اړه مې مخکې له مخکې د دروازې چوکیدار ته لارښوونه کړې، چې په داسې حالاتو کې راشي او راته ووایي، چې: صاحبه په بېړني ډول مو ستر واکمن غواړي.

دا خبره لاد بیسمارك په خوله کې وه، چې څوکیدار راغی او وې ویل: صاحبه ستر واکمن مو غواړي.

# با ارزښته ځنډ ښه یا کامه (ویرګول)

کېدای شي کله کله په لیکنه کې ځنډ ښه یا کامه (ویرګول) د یوه سړي د بندي کېدو او نیول کېدو او یا برعکس د یوه سړي د خلاصون لامل شي. په دې اړه ویل شوي دي، چې یوه ورځ دریم الکساندر (د روسیې تزار) غوښتل، چې یو سیاسي بندي سایبریا ته جلاوطنی کړي، نو ملکې ته یې لارښوونه وکړه، چې د جلاوطنۍ فرمان یې ولیکي. د فرمان منځپانګه دا ډول وه: "بخښل لازم نه دي، سایبریا ته یې ولېږئ". خو ملکې فرمان په دې ډول ولیکه: "بخښل، لازم نه دي سایبریا ته یې ولېږئ". او په دې ډول سړی د یوې ځنډ ښې د ځای د تبدیل له امله له ستر عذاب څخه خلاص شو.

# عرب او د جومات لمونځ

یوه عرب، چې د یو کار په اړه یې ډېره بیړه درلوده، په جومات کې په لمانځه ودرېده. کله چې امام تر الحمد شریف وروسته د نوح د سورت په لوستلو پیل وکړ او وې ویل: "انا ارسلنا نوحا" نور آیتونه یې له یاده ووتل، هر څومره فکر یې چې وکړ، یاد ته یې رانغلل.

عرب سړي، چې ولیدل امام له اندازې زیات تم شو، نو له وروسته څخه یې غږ وکړ: که نوح د تللو لپاره حاضر نه وي، نو یو بل څوك ولېږئ، چې موږ کار لرو.

درویش درانی

دا ستا د زړه و خواته در روان دی بل سړی
زه نه یم اوس مالك ددې مکان دی بل سړی

ددغه ښار خپلې کـه نازېږي ټول پـه مـا
ددغه ښار پر ښکلو باندې ګران دی بل سړی

زه نه یم. زه خو ستورې هومره لرې یم اشنا
ستا شونډو ته نږدې لکه پېزوان دی بل سړی

پخوا بـه دې تـل زه درګـډولم پـه خپـل غـم
خو نن دې لوند د اوښکو په باران دی بل سړی

درویشه پـه دې کلي دی دا عجب رواج
چې توری یو سړی وهی او خان دی بل سړی

مولوی احمد ګل

چې قبول یې پـه تنـدي کـړه زر څټکـه
د سرو لبو وصال بیاموند پېزوان ځکـه
چې نګریزو خان مهـده کـړ پـه درغنـې
د محبوبې لاس او پښـو لـره ورتلـه کـه
د یاقوت پـه څېر سورې د زړه پـر سر شـه
د ګلرخې پـه غوږونـو کـې ځای وکـه
د غوټې پـه څېر بهر شه لـه سل خاره
پس لـه هغې بـه بلبل درتـه کاتـه کـه
د رباب پـه څېر وچ کلك شـه کولمې تشـې
نـداري لـه بـه دې یار درشي بې شکه
احمد ګل د جانان حسن تـه حېران دی
چې پـه مخ کـې یې پري ده، کـه ملکـه.

شکیلا "اوښکه"

د اشنا غم مې د زړه کور ته په ټوپونو راځي
د کونړي مستـه څپـه ده پـه موجونـو راځـي
په مشامونو مې لګېږي، چې خمار د وږمو
ښکاري سپرلی مې نور د هیلو په باغونو راځي
ما پـه دنیا کې یو ساعت د خوشالی ونـه لید
یو غم خـو نـه دی بارانونـه د غمونـو راځـي
تـه خـو پـه سپینه راتـه وایې زه دې نـه پېژنـم
زمـا خولـه لکـه پـه رټلـو ځوابونـو راځـي
په څو ځلي مې زړګی صبر کړ خو نه صبرېږي
ویښـه لا پرېږده هره شپه مې په خوبونـو راځـي
په خوله دې نه ویل په سترګو دې لیدل شکیلا
ځکه دې اوښکې اوس په څېرو ګرېوانونو راځي.

امین الله "رحیمي"

یمـه مینه، مینه کـه څوك مینـه راسره کـاندي
ښغلـه یم حسینه کـه څوك مینه راسـره کـاندي

رادې شي عارض دې شي دفتر د محبت تـه مې
وربـه کړمـه وینـه کـه څوك مینـه راسـره کـاندي

سربه ترې لوګی کړم که ربښتیا وي دې مین پرما
داسې وایم سپینه که څوك مینه راسره کاندي

ناز بـه دې زه یوسم کـه ربښتین امین الله وې تـه
یمـه نازنینـه کـه څـوك مینـه راسـره کـاندي.

# ليکونه ديدنونه

**دا ځل د "ډالۍ" ګڼو مينه والو موږ ته ليکونه راستولي، چې دا دی له دوی څخه يې په پوره منني سره خپروو:**

له جلال اباد ښار څخه ښاغلی استاد لال پاچا ازمون ليکي:

منلي تراب صاحب!

د ډالۍ مجلې دواړه ګڼې مې ولوستې. تا سره به هرومرو دا پوښتنه پيدا شي، چې دا مجله خو د معيوبينو ځانګړې مجله ده، نو څنګه دې ټوله ولوسته؟! که رښتيا درته ووايم، نو ومې لوسته په دې، چې بانه دې معيوب و او نور دې پکې خپل مسلك (ادبي ليکنو) ته ډېره پاملرنه کړې وه. په هسې راپورونو او بې مفهومه ليکنو دې مجله نه وه ډکه کړې. تاسې د مجلې په خپرولو کې خپل لوستونکي په پام کې نيولي. هر ليکوال، چې په ليکنه کې خپل لوستونکي په پام کې ونيسي اوله ځانه سره ووايي، چې زه دا ليکنه يو چاته ليکم او هغه به يې لولي او کره کتنه به پرې کوي، نو هغه بيا بې ځايه څه نه ليکي. که د مجلې خپرونکي هم پردې پوه شي، چې زه دا مجله لوستونکيو ته خپروم او هغوی به پرې خامخا کره کتنه کوي،ن و طبيعي خبره ده، چې مجله به يې ګټوره او بريالۍ وي. له نېکه مرغه ډالۍ هم د لوستونکيو لپاره خپره شوې.

زما په اند که په مجله کې نور هم د طنز برخې ته پاملرنه وشي، نو دا به ځکه ګټوره وي، چې لوموړی خو دې برخې ته ډېر لږ کار شوی، بل هغه هدف او ارمان چې د طنز په ژبه ولس ته رسي او د يوې ټولنې په بيدارولو کې او پرمختګ کې کارنده ونډه اخلي، په هومره کچه نور ادبي صنفونه بريالي نه ي، پکار ده چې زموږ ليکوال دغه منلي ژانر ته لا پاملرنه وکړي، ترڅو هغه خپلسری چې زموږ کولتور او نورې برخې يې په مخه کړې، ولس ته په ګوته کړي. په پای کې هيله من يم، چې د مجلې ژبه مو همداسې معياري او خوږه وي.

په ادب

لال پاچا ازمون

ګران ازمون صاحب!

سلامونه او پېرزوينې.

له نېکو هيلو مو مننه. د ډالۍ په ستاينه مو زموږ له ځانه تمه پيدا کړه، خو هسې نه چې دا هم طنز وي. د طنز د ارزښت په برخه کې ستاسې نظر سهي دی، خو کاشکې د افغانانو ججوړي تنګي نه وای. موږ افغانان خپلو بېځايه ستاينو ته خوشالېږو، خو که لږه ګوته راته چا ونيوله، نو بيا مو شونډې پېږي وي. په هر ترتيب، ستاسې مشوره په سترګو منو او د ليکني همکارۍ لار مو څارو.

سرلوړي اوسئ.

***

د ننګرهار د چپرهار د (AHHUS) د صحي پروژې کارکوونکي هر يو ډاکټر صاحب محمد قاسم "تېکزاد". ډاکټر زاهدالله "عريزی"، ډاکټر احمدضياء "احمدزی"، ډاکټر عبدالولي "هاشمي"، ډاکټر تکل "عبدالرحيمزی" او ډاکټر نسيمه "عابدي".

زموږ نيکې هيلې او تاوده سلامونه هم ومنئ.

ورونو! تاسې ليکلي، چې په ډالۍ کې زموږ د مؤسسې فعاليتونه خپاره کړئ. بايد ووايو، چې زموږ همدا دنده ده، چې د ابرار مؤسسې پر فعاليتونو سربېره، د نورو مرستندويه ټولنو په اړه هم تر خپلې وسې مطالب خپاره کړو. ښه به دا وي، چې تاسې د خپلې پروژې مفصل معلومات د يوه مضمون په بڼه راواستوئ. که خدای کول، چاپ شوي به يې ولولئ.

پوهه مو تانده اوسه.

***

په پېښور کې د کچه ګړۍ له کمپ نه ګران ورور ذبيح الله عريزي صاحب!

د سلامونو سره يوځای د تېر کوچني او راروان لوی اختر مبارکۍ موږ هم درته وايو. دا چې "ډالۍ" مو لوستې او خوښه شوې مو ده، يوه نړۍ مننه.

وروره! چې ستاسې په څېر ځوانانو شاباسي مو مل وي، نو ډالۍ به لاپسې ښکلې شي. تاسې يې غوښتنه کړې، زموږ ادرسونه په ډالۍ کې شته. د چاپ په وخت کې کولای شئ، چې زموږ دفتر ته تشريف راوړئ. که خدای کول د يوې ګڼې پر ځای به دوې درکوو. هېواد ته مو د خدمت په لار کې متې پياوړې اوسه.

***

د پېښور له آبدرې نه هر يو ضابط صاحب رحمدل او ښاغلي صفي الله خان په سلامونو نمانځلي يوو. دغو ورونو د ډالۍ دويمه ګڼه ډېره خوښه کړې. همدارنګه يې د ابرار مؤسسې ټولو کارکوونکو ته نيکې هيلې رالېږلي، چې موږ ترې دلی دلی مننه کوو او ورسره يې د سرلوړي او سوکاله ژوند هيله من يو. ښاد دې اوسې.

***

د کونړ ولايت د اسمار نه ښاغلی "ژوبل" صاحب!

شعر مو راورسېد. ډېره مننه. احساسات مو د قدر وړ دي، خو پکار ده، چې په دې برخه کې ډېره مطالعه او رياضت وکړئ او بيا چې مو کله پر زړه د "آمد" څپه راشي، نو شعر وليکئ. کېدای شي، چې بيا مو شعر کې رنګونه پيدا شي. هيله ده، چې له موږ به خوا نه درنوئ!

ستاسې د همکارۍ په هيله.

***

ګران ورور ډاکټر صاحب شاهجان "جهاني" صاحب!

زموږ تاوده سلامونه هم ومنئ. دا چې ډالۍ مو خوښه شوې، موږ مو نور هم وهڅولو. تاسې د سياسي مطالبو او د علمي شخصيتونو سره د مرکو غوښتنه کړې، نو که خدای کول دا کار به هم وکړو.

له مشورو به مو نه هېروئ.

# پاملرنه

د "میني" په نامه خپرونې د خپلې دویمې - دریمې ګڼې په (۶۵) مخ کې یو کرکجن لیك خپور کړی او د "کابل سنټر" په نامه د انګلیسي ژبې کورس په کې ادعا کړې، چې ګواکې دوی د "ډالۍ" په نامه دېوالي جریده درلوده، بیا اخبار شو او اوس غواړي، چې په همدې نامه مجله چاپ کړي، خو ابرار موسسې د مطبوعاتو د قانون نه خلاف ورزي کړې ده.

موږ ددغه لیك پر ادبي او اخلاقي ښوېدنو نه ګرېږو او یوازې دومره وایو، چې:

*۱ـ پکار وه، چې "کابل سنټر" د "ډالۍ" مجلې د لومړۍ ګڼې له خپرېدا سره سم ابرار موسسې سره تماس نیولی وای. د حېرانتیا خبره دا ده، چې دغه بناغلي شپږ میاشتې وروسته، چې د ډالۍ دریمه ګڼه خپرېږي، خبر شول. که دوی وایي، چې موږ اوس خبر شو، نو دا ورسره څکه نه منو، چې د ډالۍ ډېره برخه په جلال آباد کې وېشل کېږي او کورسونه هم معمولاً په ښارونو کې وي، نه د غرونو په څوکو کې.*

*۲ـ لکه چې د هرې ورځپاڼې یا مجلې تر خپرېدا لومړۍ د هغوی چلوونکي د سوي نامه د تاکلو په برخه کې پلټنې کوي، نو ابرار موسسې هم تر غونډو وروسته دا کار کړی او په دې لړ کې یې د ننګرهار د اطلاعاتو او کولتور له ریاست سره تماس نیولی او هلته جوته شوې، چې د ډالۍ په نامه اخبار د نوموړي ریاست مسوولین نه پېژني او نه اجازت پاڼه لري.*

*۳ـ "کابل سنټر" کولای شي، چې د خپلې ادعا د ثبوت لپاره د "ډالۍ" په نامه خپلې پخوانۍ درې ګڼې راوړي، موږ به د دوی لپاره د مجلې نوم بدل کړو. خدای دې وکړي، چې په نوموړي نامه دوی هېوادوالو ته تر موږ ښه خدمت وکړي.*

کتنپلاوی

## د اختر مبارکي

د ابرار موسسې د ریاست مقام او ټول کارکوونکي د نېکمرغه لوی اختر په مناسبت ګرانو هېوادوالو ته د زړه له تله مبارکي وايي او ورسره هیله لري، چې ماړه هېوادوال مو په خپلو خوشالیو کې بېوزلي هېرنه کړي. *"اداره"*

simultaneously kissed him several times. He in the morning went again to work. With the passage of every day, some happiness and unpleasant undermine his heart feeling. He on the fourth day of his mercenary dared and hardly told. "Ustad I don't have my Eid's clothing, today give me my wage, because the tailor would not sew, if it is late. Ok, I will take it for you. He till evening was very anxious about the money; but when received the wage of four days, was as happy as could not differentiate the day from night.

At that day, he did not wash his face and ran toward home. Along the way he hurriedly counted the money and then would put it back in his pocket. He along the way repeated this process, and later reached home. With observance of the money, his mother's eyes turned reddish. She quickly kissed the money in his hand; and when looked at that, taers came off her cheek. When in late evening bought storai the cloth, he promptly took it to the tailor of the town, but at Eid's days it is quite difficult to chat with a tailor. The tailor after too much is seething took the cloth. It was only one day left to Eid; he was nearly succeeding, and only was to pay the tailor. He due to happiness could not go to sleep. One day to Eid seemed to him as on year. On the very day, he reached on work before everyone else. Every second of that day would seem as a year. Today was the last day of his work. Today's wage was allocated for sewing. He under the pretext of payment was eager to see his dress too. Thinking this, the evening was also approaching, but only half an hour was to the day off, he was gone with his imagination. His mind was playing the pleasance of Eid cheers; he then saw himself among other boys with new cloths-when Ustad loudly asked him a brick. With hearing their, he like a sleepy nerve patient jumped back, and his leg hit a loser board, but before taking hold, of the overhead wood bar, reached the ground from fourth floor, and then childish soul was surrendered to God.

## Writing a letter



What are you doing?
Writing a letter to my brother.
Don't be silly, you can't write.
Don't worry my brother can't read either.

## Well Done

By: S. Sahar Stanizai

A hunter shot at a bird in the sky but missed it.
"Well done!" Shouted a friend.
The hunter became angry and said: Are you laughing at me? I said well done to the bird not to you!" The friend replied.

## Fly

A person said to the waiter.
A fly is swimming in my soup.
The waiter said, if it doesn't swim it would sink.

## Best Manners

- Truth is better than gold.
- Kind words bring back kind action.
- Always tend a helping hend.
- Think twice before you speak once.
- He that our thorn must not expect corn.
- Eat to live, but live not to eat.
- While there is life, there is hope.
- There is no gain without pails.
- Every raise has its thorns.
- Let not your tongue cut your throat.



# Eid Clothing

Hafizullah Turab

As the Eid was approaching, her anxiety and wondering also enhanced. She was perplexed what to tell Storai? She deceived him for 15 days, but was unable to convince him further. Where he was asleep at night, would look at him with regret. Tears would appear when she thought about her debility and for a small desire of stori to there would woke up and would several times kissed at sleep. She for a long time would look at the stars and then would pray God for help and would tell herself with sorrow: oh, God. Look at my suffering! I except you don't have anyone else. Al-mighty God! I don't ask anything except clothing of storain. Would prayer always if I can provide storai garments. After lamentation, would look at households and other materials, but there was nothing to meet the requirements. Then would think desperately and would go into phantasms. After a while would remind circumstances of previous years, the time which for her was not less important than sweets of heaven. Her Storai at that time would have been attractive and handsome than other children of the town. The groups of relatives would come to their house, but as her husband died of mine incident and the right hand of storai also cut in that casualty. So, after a short period of time, all happiness swept away from their house, and the same storai who in the past seemed like a charmed object in the sky, seemed nothing more than a beggar. They except God had no one any other custodian. Before, his mother could keep anxious about Eid cloths; keep him happy, but this year he was deeply anxious about Eid cloths; As hard as she tried, but could not succeed to provide clothe for her son. If any one on those days gave her the money on interest, would have accepted it, But the fortune of poor is never in their favor with the passage of time, her suffering was increasing. She was very complaint of God. But there were only five days to Eid a man knocked the door of her house in early morning. She quickly went to the door and asked from the back of the door "who are you?" I am Jamal and found a Job for sturai, if you wish, let him go with me right now" replied the man. He quickly spoke these. But sana told him "God bless you what would storai do with one hand to carry bricks?"

I previously told the owner of the house, it will be near to me. He would give the bricks from a near distance; if God were willing, he would be with me after Eid too. Hurry up, it would be late; "ok, I will wake him up" She with uneasiness woke him up and sent him with Jamal ustad to work.

In that morning, Sanga was very upset about her son, but was somewhat happy that five days wage would cover the purchase of Eid's dress for storai.

At that day until evening he picked up bricks with his delicate hands and would pray for his father's friend Ustad Jamal.

When in the evening being gravely, tired returned home, his mother was awaiting him at the gate; quickly embraced him and them looked at him. His child hood and her own distress caused her weeping and

stand on their feet and would legitimately provide livelihood for their families.

You see that the traffic is very crowded in Kabul and only this project can do to avoid delay.

My desire from the ministry of martyrs and disabled and all other organizations is to implement and fund such projects, as on the one hand, to facilitate and assist Afghanistan's disabled, and prevent throng of the city on the other.

After him representative of the ministry of women Del Afrouz appreciated AABRAR activities and congratulated the audience, particularly the disabled I respect of this new project.

Likewise, at mentioned gathering, representative of CDAP, responsible of physiothrope department Mr. Razi Khan praised the project and contributed US$ 1000 on behalf of CDAP to the project.

On behalf of disabled, Mr. Naik Mal spoke and appreciated this project. At the end of meeting, minister of disabled and martyrs Mr. Abdullah wordak and German office assistant "Laila Lupsk" cut opening tope and congratulated all participants. The meeting ended at 11:30AM.

By using the Disabled cycle messenger services, you will not only help to strength the economy of Afghanistan, but you will provide Job opportunities for many disabled Afghans?

# Disabled Bicycle Messenger Services (DCMS)

On November 21,2002, AABRAR organization along with other activities, opened DCMS center officially in Kabul.

At their inauguration meeting, in addition to numerous internal and foreign guests, Mr. Abdullah wardak, minister of martyrs and disabled of the transitional government also participated in their gathering.

Meeting was initiated with recitation of some verses from Holy Quran. In the opening statement, Dr. Abdul Basir Turyalai, president of AABRAR organization, while defining requirements and advantage of their project said when I went to the United States, I saw there that deliverance of people's messages from one place to another is very easy by bicycle. It seemed to me a very useful activity especially in cities where the traffic and movement of people is very dense. Thus I decided to implement this process in Afghanistan, So, there is the day that I after some years succeeded to start this objective at the capital of Afghanistan.

President of AABRAR added: It would be better to briefly explain the story regarding D.H.L. D.H.L were three brothers. The three brothers were born in a very poor family. At a time they enabled to each one have a bicycle. One day they met the traders and rich men of the city and told them that if you want to send or receive messages from some one, then we will accomplish this job by bicycle very cheaply and easily without any delay. Thus, the citizens signed agreement with them, that by now, it achieved the goal internationally. It is hoped that some day the DCMS would also compete with D.H.L.

Thereafter, Minster of disabled and martyrs of the transitional government Mr. Abdullah wardak in the course of his statement said: In its past history, AABRAR organization conducted many more such initiatives that today's project is a new example. He added that this new project of AABAAR is such an initiative laving no any example. This project would have been able to deliver messages, letters, and gifts to relevant addressees very easily.

Another important is that all such messengers are disabled. Therefore this project would encourage disabled to provide their legitimate necessities with their own hands; and instead of charity, be come self sufficient, and on the other hand, delivery of messages would be fast which would have been delayed due to heavy traffic in the city. We hope other organizations also establish such projects.

Thereafter, president of D.E.D Mr. Bawar told audience:

I am very happy a new real project is going to be inaugurated. This is a very good project and a benevolent action. Of the bless of this project, disabled would

# International Day of Disabled was celebrated




A Bicycle and wheelchair race was conducted by AABRAR in connection of the international day of Disabled with the financial assistance from Medico international, Caritas Germany and Diakonie Emergency Aid in Jalalabad, Afghanistan. Because of the Ramdadan (The Muslim Holy Month of Fasting) the event was held on 30th October 2002 instead of 3rd December.

A total of 130 cyclists with physical disabilities have attended and participated in the bicycle race. The disabled competitors almost come from 10 Afghan provinces where our Peshawar based disabled cyclists couldn't come because of the closer of the Pak Afghan border.

It should be pointed out here that a total of 16 couldn't participate in the bicycle race because of the medical reasons, although they had a chance to attend the awarding ceremony and share their experienced with other fellow's disabled.

The disabled cyclists were latter on divided into six groups (i.a. below knee, Above knee, children with bilateral amputations, Wheelchair riders and children A and B groups have actively participated in the race.

The destination for competition was different for each category of the disabled competitors while the measurement of the destination was carried out before the bicycle race. Prizes awarded to the winners of first, second and third position winners of each category. The first winner in each category got a Chines made bicycle, second position got sewing machine while others who secured third position were awarded with wall clocks, and hand clocks. A total of (4) ICRC provided winners in each category prizes for the first. Thousands of spectators including women, children and people from all walks of life have watched the disabled competitors during the race.

The following is the brief breakdown of the first, second and third position winners.

S/NO.

| | |
|---|---|
| 1- Habib Jan | |
| 2- Romal Khan | Bicycle |
| 3- Abdul Qahir | Bicycle |
| 4- Nazifullah | Destination |
| 5- Mirpacha | 25Km |
| 6- Nabi Gul | 20 |
| Category | 10 |
| BK | 5 |
| AK | 10 |
| Double Amputee | 10 |
| Wheelchair Riders | Position |
| Children "B" Group | First |
| Children "A" | First |
| Prize | First |
| Bicycle | First |
| Bicycle | - |

In addition to the above second position winners in each category got sewing machines while third position winners received wall clocks and trophies. Four and five position winners were also provided with some second quality wall.

Beside other the assistant Governor of Ningarhar Dr. M. Asif Qazi Zada had attended the awarding ceremony and has given a speech in support of disabled persons.

any effort in the field of vocational training.

At last I thank all of you.

In the hope of a prosperous, free and we allay Afghanistan.

Thereafter, Mrs. Fereba read her Dari article as Honorable guests and dear students!

I first of all, welcome your presence here. As you are well aware that in the past a great number of our sisters and brothers as a result of various causes, the important of which was political instability in Afghanistan, led significantly



**A View of gathering in the International Day of Disabled.**

to creating disable and maims, I want to remind that constant disabled not only disturbed the life of some of our people and faced them with disappointment and other disasters as health care, economical and spiritual, but disabled of some youngsters – male and female, ban redid and fast progress/development of our country. Viz, if a big portion of active persons enchanted disabled, this is not only a great negative impact on economy of that society, but may enhance the problems of other members of that nations, such as indigent Afghan society that its economy mounted to zero which is absolutely irreparable.

But, despite the problems our disabled class is facing with, a positive symmetry is also available. As our society is very a hard – working and zealous society; and Afghan disables are also a portion of this society and with a little guidance and slight support, can figures of the society, and some disabled who are present in this gathering, is the best example of our explanation.

Lastly, I once again convey my best regards pertaining to your precious participation in this very day of celebrating disabled international day and heartily welcome your participation in this meeting, presented by out – reach section of AABRAR, and pray God to bless you.

Abeda graduated of AABRA sewing section, said:

With permission of honorable guests and sincere sisters! I on behalf of female disabled, appreciate welfare organization that paid special attention toward us the disabled. I have taken AABRAR two courses, that one was concerned with occupational therapy for six months and the other one Refresher course which was programmed for four and a half months, that at the end I achieved enough experience in that aspect. I presently work with an organization called .I.O.C, through which I will fulfil my economical requirements, and on the other hand, serve my countrymen.

I once again appreciate AABRAR welfare organization that paid special attention to we disabled, in order that the disabled are able to solve their problems themselves, and may not be burden on the shoulders of others. Thanks for your attention.

At the end of gathering, a competition between disabled girls in taking bananas started that the success was of team A.

# Afghan disabled women and girls Celebrated disabled international Day

Said Elyas Sadaqat

On fourth November. 2002 – "Women Out Reach, AABRAR organization" celebrated disabled international Day in Jalalabad city splendidly, where many disabled girls and women participated in that gathering.

The gathering, which was organized by AABRAR organization. Disabled Basmina initialed the ceremony with reitation of some verses from the Holly Quran. Thereafter, assistant of AABRAR, Mr. Umara Khan, through his short statements said: "December Third is International Day of disabled, but since that date coincides with Ramazan, therefore we decided to celebrate it today". He added": After 1981 and in first decade of 1992 called it the decade of disabled; and called December third the decade of disabled, whereas accepted December 3rd as the international Day of Disabled.

People on this day arrange meeting to pin point the rights and problems of disabled and seek to find them job opportunities. But the important is that when they themselves don't define their problems, then it seems difficult the other distinguishes the stems of their relevant hardships properly. He said:

"It is correct that some departments in our country undergo the affairs of disabled; but there has nothing been lone in their respect. At the end of his statements, thanked those participated in this gathering.

On behalf of female personnel of AABRAR, Mr. Huma Said: Honorable guests, dear students and the staff of AABRAR organization!

I first of all, sincerely welcome you on this occasion.

It is clear that without women a society cannot progress and or develop. As today our country suffers great socio-economical damages and ruins, one cause is that many of our mothers as well as sisters have been kept away and deprived of vocational and other sources of vital necessities. I strict and sound care have not been paid, we them will never the pleasance of life.

Fortunately, AABRAR has realized such shortages and since long time provided us with sewing, literacy and medical training courses, and has had some graduates in this respect and so, they carry on their respective jobs like other healthy creatures. If today we join our voices with disabled of the world, then request relevant authorities and organizations to extend their benevolent assistance. To disabled, particularly, to women, that in addition to safeguard their legitimates natural rights, not to spare

**Editorial**




# New Disease




There is no doubt that, if revolution success on the price of bloodshed and sacrifices, in return, provide such favorable elements and opportunities that with their implementation and utilization, would achieve many complicated desires and hopes and will have access to a real life.

Unfortunately, the above interpretation brought in numerous adversities to Afghan population and result was severely inverted, and the blood of thousands of martyrs and disabled as well as their enthusiasm was disregarded as the example has not been experienced in the history of the country. In addition to last year's illiteracy, poverty, vagrancy and misbehaviors, it caused such vies, as very few Afghans were familiar with them. They never drew hands for charity and neither asks for any beneficence. The above all, loved their country and paid full respect to their cultural values. Regretfully, since many years, extravagance and dissipation affected this principle, and it is that there were some persons who, as one sag, captured the treasure of korah. These persons instead of concealing their sudden wealth from people, put into exhibition their luxurious cars, splendid buildings and skyscrapers before officiated and hopeless Afghans. From such behaviors, people understood that previous complicated mottoes they expressed, were only the bubbles on the water, but their main aim was that they gained.

Prolongation of such action encouraged others to accomplish so. As a pashtu proverb one sees, the other begrudges. That is why now many Afghans are in the opinion that neither knowledge, nor manliness would be useful, the standard of humanity is only wealth, what so ever it can be obtained, and as soon as possible, they also as there gentlemen enjoy luxurious life. Before,: others would gain money and we story" but now it is not that way. Regretfully, that these gentlemen may keep this disease with themselves.

If you cut you hope from another creature congratulation to your reign if even you are a beggar.

***On this hope***

***Hafizullah Turab***




**PUBLISHED BY:**

Afghan Amputee Bicyclists for Rehabilitation and Recreation (AABRAR).



**Sponsored by:**

***Medico International.E.V. Diakonie and Caritas Germany.***

*Address:*

AABRAR C/O KJRC Jamrud Road
U/T Peshawar, Pakistan.
**Phone:** 091-092-844078
**Fax:** 091-092-840521
**Email:** aabrarps@psh.paknet.com.pk

**OR**

AABRAR Public Health Hospital No.1
Ningarhar Jalalabad Afghanistan.
AABRAR Taimani Sarsubzi Chowk
second road near sher-e-yazdan Mosque
Kab ul/Afghanistan.
The Bank of Khyber, Main Branch the
Mall Peshawar Cantt
**A/C No.** U$$ 01818007

## Table of Contents



**Pashto and Dari 65 Pages**

# Dāləy

"THE GIFT"

Quarterly Magazine of AABRAR

Third Issue January - March 2003



By using the disabled cycle messenger service, you will not only help to strength the economy of Afghanistan, but it will also provide jop opportunities for many disabled Afghans.

